



# کندهار



دافغانی سری میاشتې دټولنې عالی رئیس والاحضرت
شهزاده احمدشاه چې ددوی په خاصه پاملرنه دسرې
میاشتې مؤسسه پر مخ تللې او تعاونی خدمتونو ئې
زیات انکشاف موندلی دی

کندهار

د ۱۳۴۹ لمریز کال د تلې میاشت

# د سرې میاشتې

## د تجلیل په مناسبت

که څه هم په انسانانو کې د یوې خوا د خودۍ روحیه روزل شویده او د ارغونو زمانو په ادوارو کې د ډول ډول خواهشاتو د ترسره کولو په ملحوظه ئې د شخړو او تیریو په وجه د وینو تویولو څخه ځانونه نه دي ژغورلي خو د بلې خوا ئې بیا په هغه اندازه د انساني فضیلت په برکت د بشر دوستۍ او نوعه پروري د روحیې له کبله ئې د زړه سوی او د خیر اندیښنو د لاسه ندي ورکړي کوم شي چې د انساني ټولنو د مصیبت او ربړونو موجب ګرزیدلی دی نو تل ئې هغو آفاتو ته په ممکنو وسایلو سره تدبیرونه نیولي دي څو بشر وکړای شي په هره وسیله سره چې وي د طبیعي حوادثو او نورو زیانونو په مقابل کې مجادله وکړي او هغه مصیبتونه چې د بشري ژوند تهدید وي د هغه مخنیوی وکړي تاریخي شواهد و په ارغوني نړۍ کې د انساني ټولنو د غمجنو واقعاتو بیلو بیلو پیښو هنداره موږ ته په لاس کې راکوي خو څومره چې بیا د دغو پیښو پر سالم محور رڼا واچول شي موږ ته په عین حال کې جهان بیني را په نصیب کوي

که څه هم د بشر غیر انساني اعمالو او بي رحمانه کارونو ته بشر دوستو خلکو په کرکه کتلي دي نو ځکه د پورتنۍ لنډې مقدمې څخه

خپل د مطلب منځ ته د خیر او بشر خوښولو خواته راګرزو چې هغه د بشري ټولنو سپیڅلي ضمیر او د بشردوستو انسانانو د انساني کرامت ښکارندوی هانري دونانت

دی چې په ۱۸۲۸ کال کې د ژنیو په ښار کې پیدا او لوی شوی دی.

کله چې ئې د ۱۸۸۹ کال د جون په ۲۴ نیټه د فرانسې او اتریش د قواؤ ترمنځ جګړه

پیښه شوه او په دغه ورځ د مؤرخینو په قول په دوه اړخیځ ډول څلویښت زره تنه مړي یا ټپیان د جګړې پر میدان پاته شول نو هانري دونانت د انساني عاطفې د احساس له مخې د یوه بین المللي تجویز په هڅه کې شو او د

ټولو بشر دوستو انسانانو څخه ئې دا هیله وکړه څو بالاخره پدې عالي مفکورې بریالی شو او د بین المللي

سره صلیب په نامه سره یوه مؤسسه تاسیس شوه نو ځکه دغه د بشر خواخوږي او د عالي فکر څښتن د نمانځنې وړ بولو چې د ده د دغه نیک

اقدام له برکته د نړۍ په اکثرو هیوادو کې په مختلفو نومونو سره د اسې عام المنفعه ځانګې یو په بل پسې تأسیس شوې چې پدې لړ کې زموږ

په ګران هیواد افغانستان کې دغه مؤسسه د سرې میاشتې په نامه یادیږي او تر اوسه پورې ئې د خپل عالي رئیس

والاحضرت شهزاده احمد شاه په لارښوونه د انکشاف او پر مختګ پر لور ګړندي ګامونه اخیستي دي چې په

د ننه هیواد او د باندې هیوادو کې ئې په خپل تکاملي سیر کې د مصیبت ځپلو سره د زیاتو همکاریو او خدماتو مصدر ګرزیدلې ده.



صدراعظم ښاغلی نور احمد اعتمادی دهیواد شمالی سیمو ته پخپل وروستی سفر کی
په هغه وخت کی چی په شبرغان کښی د نفتو او گازو د برمه کاری جریان گوری

دامتیاز خاوند : دطلوع افغان نشراتی مؤسسه
مسؤل مدیر: زلمی (بارک)

کندهار

میاشتنی خپرونه

ادبی ، تاریخی ، اجتماعی ، علمی

اداره: دشهیدانو واټ

د تاسیس کال ۱۳۳۹
دیوولسم کال اوومه ګڼه
پرله پسی ګڼه ۱۲۱

کالنی بیه

په کندهار کی [۲۸] افغانی

دهیواد په داخل کی [۳۲] د

په دباندنیو هیوادو کی یو ډالر

د تلی میاشت
۱۳۴۹ لمریز کال

---

# ددې ګڼې مضامین

# یوه ستره ضایعه

د تلې په ۸ نیټه زموږ د یوه نیږدې دوست اسلامي هیواد متحد عربي
جمهوریت ستر ملي قاید او محبوب جمهور رئیس جمال عبدالناصر
د زړه د درېدو له کبله په قاهره کې ستر ګې له جهان څخه پټې کړې او په خپل
ناڅاپه او بې وخته مړینې سره ئې نه یوازې د متحد عربي جمهوریت
دیرش ملیونې ملت سخت غمجن کړ، بلکه ټول عربان او مسلمانان،
د آسیا او افریقې خلک د ده په فقدان زیات خواشیني شول.
د متحد عربي جمهوریت د لوی لیډر، مدبر لارښوونکي او اجتماع
پرست شخصیت په مړینې سره د نړۍ د لویو هیوادونو لکه امریکې
شوروي اتحاد، انګلستان، فرانسې، او نورو زیاتو هیوادونو سترو



ښاغلي جمال عبدالناصر د مصر جمهور رئیس پس له هغه چې په
سکندریه کې ئې د سویز کانال د ملي کیدو اعلام وکړ قاهرې ته
د بیرته راتلو په وخت کې د هغه ځای د آزادۍ غوښتونکو
خلکو له خوا په ډیر جوش و خروش سره استقبال کیږي دا
عکس تاسو ته د مصر د فقید جمهور رئیس د هغې
تاریخي ورځې خاطره در په یادوي

---

حکومتي مشرانو او د ملګرو ملتونو د ستري بین المللي مؤسسې
سرمنشي او تانت خواشیني څرګند کړه او د هغه فقدان په تیره بیا
پدغه حساس ګړي کې چې د منځنۍ ختیځ حالات ډیر وخیم او تر اوسه
پورې د حل عادلانه لار نده ورته پیدا شوې او د جمال عبدالناصر
غوندې محبوب عربي لیډر
وجود د دغو خبرو تیاو، او
د اسرائیلو او عربو د اختلافونو
لیرې کولو او په خپله د عربو
ترمنځ د یووالي په منځ ته
راوستلو کې ډیر غنیمت
او اغیزه ناک و یوه ستره
جهاني ضایعه او نه تلافي
کیدونکې جبران دی او هغه
خلاچې په مصر، عربي ټولنې
او حتی د نړۍ کښې د ده په
فقدان سره پیدا شوی ده په
ډیر مشکل سره ډک کیدای شي.
جمال عبدالناصر د متحد
عربي جمهوریت هغه زړه
مشر د ګلکې ارادې خاوند
او نیشنلیست لیډر و چې د
خپلې انساني مینې، اجتماعي
خدمت او وطن دوستۍ د لارې
ئې په لږ وخت کې د عربو او
د نړۍ د زیاتو انسانانو په
زړونو کې ځای ونیوی د عربي
متحد جمهوریت او عربي
نړۍ له پاره یې نه هیریدونکې
خدمتونه وکړل او خپل ټول
کوښښ ئې دې ته وقف کړ چې
خپل ملت د ترقۍ او نوي ژوند
پړاو ته وخېژوي او خپل
هیواد د اقتصاد او علم له

حیثیه نور هم پرمخ بوزی .

نوموړی مشر د عربو د یووالی او د قام د خدمت په لار کی د ډېرو اندېښنو او د ستړی نه ستړی کېدونکو هلو ځلو او ګرانو خدمتو او ښې فداکاری او ستر صداقت سره یې د یوه زړه سواندی عربی لیډر، محبوب شخصیت وفادار او انسان دوسته انسان نوم او جهانی شهرت وګاټه چې عربان او نور مسلمانان او د نړۍ ټول سوله او عدالت غوښتونکی انسانان به یې

تل تر تله نوم په ښو سره یادوی .

جمال عبدالناصر په عربی متحد جمهوریت کښې د صدراعظمی او د جمهوری ریاست د شپاړس کلنی دوری په موده کښې خپل هیواد او عربی نړۍ ته ستر خدمتونه سرته ورسول د یوې خوا یې د صیهونیزم او خارجی استعمار پر ضد کلکه او په زړه توره مبارزه وکړه او د بلې خوا یې په دننه هیواد کې لوی اصلاحات منځ ته راوستل او د خارجی او داخلی لویو مشکلاتو او ستر وخنډونو باوجود یې خپله ملی مجادله پرمخ بوته او په آسیا او په افریقا او نړۍ کې یې د استعمار



پدی عکس کی د سویز د کانال حساسی نقطی چې د مصری عسکرو له خوا ساتلی کیږی لیدلی کیږی

پر ضد او د ملتونو د آزادۍ په لار کښې خپل اغیزه ناکه نقش ادا کړ، او

په تېره بیا د عربي، اسلامي غیر منسلکو او په نظامي ډلو ډلو کښې د ګډون نه کوونکو هیوادونو په قطار

کښې د دغه مرحوم جمهور رئیس ستري لارښوونې د عربي متحد جمهوریت هیواد ته خاص مقام او ارزښت ورپه برخه کړ.

جمال عبدالناصر په پوره زړه ورتیا او مېړانه سره د سویز کانال چې د متحد عربي جمهوریت مشروع حق دی د زیاتو وینو تویولو او فداکارۍ په مقابل ملي کړ، د اسوان عالي بندئي جوړ او د خپل

هیواد او عربي نړۍ لارښودنه یې په پوره لیاقت اهلیت او درایت سره وکړه.

د نوموړي مرحوم د

زمامدارۍ په موده کښې د افغانستان او متحد عربي جمهوریت د نیکو کوښښونو په نتیجه کښې زموږ د دوه

دوست او اسلامي هیوادونه ډیر سره نژدې شول او روابط یې په بې سابقه توګه تقویه او انکشاف ومونډ

په تېره عربي متحد جمهوریت ته زموږ د ګران ټولواک دوستانه سفر او افغانستان ته د جمال

عبدالناصر راتګ د دغو مناسباتو په ښه کېدو او پراختیا کښې ستره اغیزه وکړه.

نن د بده مرغه مصر او عربي نړۍ یو داسې ستر قاید او ملي لیډر د لاسه ورکړ چې په خپل

بې وخته او ناڅاپه مرګ سره ئې نړۍ وښوروله چې د هغه ژوند

او نیکه لارښودنه عربي نړۍ یووالي، نړیوال عدالت ته رابلل او د صیهونیزم او استعمار په مقابل کښې یو لوی سد او د خپلې سمې لارښوونې او معقول

سیاست له کبله یې او س خپل او پردي، موافق او مخالف په مړینه سخت خواشیني شوي دي.

موږ د هغه ستر مېړه او نامتو عربي مجاهد لیډر روح ته دعاوې لېږو او په فقدان ئې خپله زیاته

خواشیني څرګندوو او باور لرو چې د عربي متحد جمهوریت ملت او عربي نړۍ به د ده پر پل ګامونه کښېږدي او په خپل یووالي او

ملي مجادلو سره به خپل ملتونه نیک مرغه لوړ او د هغه فداکاره مشر روح ښاد وګرزوي

ایوبي



پدې عکس کښې مصري داؤ طلباني ښځې د خپل ملي حاکمیت او شئونو د دفاع د پاره و نظامي خدمت ته ترشا ملیدو ورو سته پداسې حال کښې چې د عسکري تاکتیک او د توپک د استعمال د طریقو زده کړه کوي لیدلی کیږي

سید حسام الدین (حسام)

# زموږ اجتماعي او ملي وظیفې

د وظیفې پېژندل او وظیفې ته درناوی د یوې ټولنې د ګروهو د اخلاقي، اجتماعي او ملي وجایبو څخه شمېرل کېږي.

لکه څرنګه چې د یوې ټولنې وګړي د خپلو شرایطو د تحصیل په دایره کې د یو لړ اقتصادي اجتماعي، فرهنګي او نورو وظیفو په سرته رسولو کښې مکلفیت او هر وګړی د خپلې ټولنې او هېواد په وړاندې یو لړ ټاکلې اجتماعي او ملي مسئولیتونه لري چې ښایي د خپلې وظیفې د پېژندنې له کبله د هغه په سرته رسولو کښې هاند او دقت وکړي.

البته د لته یو اځي او یو اځې د وظیفې پېژندنې څخه مقصد په وظیفه کې پابندي او د کار په وخت کښې حاضر والی نه دی، بلکه پر وخت باندې د خپلو چارو سم صادقانه او اغېزه ناکه اجراآت دي.

د مثال په توګه که د دولت یا موسسې یو مامور د خپلې وظیفې د مکلفیت په لحاظ پر خپله وظیفه حاضر هم وي خو په ټاکلي وخت کښې خپله وظیفه لکه څنګه چې ښائي سرته ونه رسوي او خپل رسمي وخت چټي او خوشې تېر کړي.

دا نه یو اځې دا چې دا سې مامور د خپل ور سپارل شوي وظیفې په برخه کښې مطلوب او وظیفه پېژندونکی نه دی بلکه د اډول کړنه او چلند د وظیفې د مقدس والي او درناوي له لحاظه یو ستر اجتماعي او ملي جرم ګڼل کېږي.

په داسې حساس وخت کښې چه زموږ په ګران هېواد کښې د اساسي قانون او ملي وثیقې دستر و ارزښتونو په رڼا کښې د یوه لړ عام المنفعه او انکشافي پلانو د تطبیق کار شروع او د اجتماعي، اقتصادي او فرهنګي لویو پرمختګونو لاره په ټینګه اراده د خپل بشري توان په حدودو کښې د عمومي مشکلاتو د حل په غرض په چټکۍ سره وهي او وینو چې د اجتماعي مقاصدو او نورو لویو مشکلاتو پر ضد چې د رشوت، قاچاق، اختلاس، ناپوهي، فقر او داسې نورو څخه عبارت دي.

د هر لوري څخه د مبارزې کولو غوږ نه را پورته شوی دی خو هغه څه چې واقعاً دا مبارزه د بریالیتوب ستر سرحد ته رسوي هغه د ټولنې د وګړو تر منځ د وظیفې د پېژندنې احساس او د واقعي فداکارۍ ضرورت دی.

څکه نن دا ثابته شوې ده کومې ټولنې چې د وګړو په منځ کښې ئې د وظیفې پېژندنې احساس نا توانه او یا نوی د هغو ټولنو د اجتماعي، اقتصادي، فرهنګي او سیاسي موجودیت کاروان شاته پاته او تل په بدبختۍ کښې شپې سبا کوي.

نو پر موږ هر یوه افغان لازمه ده چې د خپلې ټولنې او هېواد د ترقۍ او سمسورتیا لپاره نور هم د خپل وس په اندازه د پوره اعتماد او یووالي په رڼا کښې کار وکړو او د اجتماعي او ملي وظایفو د صادقانه سرته رسولو احساس نور هم په ځانو کښې غښتلی او وروزو چې په نتیجه کښې د ګټور صالح او وطن دوست غړي په صفت ځان څرګند کړو.

د(نومیالی) ترجمه او تصرف

# عصبی نظام

ټول هغه احساسات چې د بدن له لاری ماغزه په خبر یږی ټول هغه فعالیتونه چې دمغزو ارادات ئې له بدنی اعضاوو څخه غواړی ټول هغه اتوماتیکی جریانات چې بدنی ساختمان کی چالان دی

ګرده داسی چاری دعصبی نظام په توسط اجرا کیږی.

عصبی نظام له مختلفو اعصابو څخه جوړ شو یدی چې ځنی اعصاب ئې نری

او ځنی پنډ ځنی ئې لنډ او ځنی ئې اوږده دی خو په عین حال کښی ګرده یو له

بله سره اتصال لری او د بدن وهری برخی ته ئې تار و نه ورځغلولی دی که په بدن کی عصبی اتصال لیری کی عصبی اتصال نه وی نو پخپله بدنی اجزا او د هغو وجود به دطبعی محسوساتو په منځ کښی له یوه مخه سره

بی ربطه هسی وګڼل شی ځکه دا یوازی دعصبی نظام د افرادو وظیفه ده چې

داحساس او حرکت دلاری ئې د بدنی هستی و مختلفو موادو ته د یوه منظم موجود حیثیت ورکړیدی.

اعصاب که تجزیه سی نو هر عصب په خپل ځان کښی له کوچنیو مفرداتو څخه جوړ شوی دی چې وهر مفرد ته ئې د بیالوجی په اصطلاح «حجره» ویله کیږی.

د اعصابو هره حجره داسی لیده کیږی لکه مکړی غوندی چې غوټی سر لری او

یوه لیف داره لکی په پوری وی، دعصبی حجری سر که خراب سی نو بیاده جوړیدو امکان نلری لیکن لکی که ئې پری سی یا زخمی سی نو بیا بر ته په خپله ځان تولیدو لای سی.

اکثره دعصبی حجراتو سرونه یا په مغزو کښی ښخ وی یادشمزی په حرام مغز کښی خولکی ئې چې تر دروفوټو پوری ئې لا اوږدوالی هم رسیږی په زرګ په سلو سره یو ځای

سوی وی او پنډی پنډی پلی ځیی تیاری سوی وی چې دځینو پنډوالی ئې لا دیټی ګوتی واندازای ته هم رسیږی.

له مغزو او حرام مغز څخه نود غه اعصاب راشروع شوی وی او د بدن تر بیخی لیری نقاتو پوری ئې خپل تار و نه ور رسولی وی.

د اعصابو حجرات د بدن د غوښو او نورو موادو له حجراتو سره په مشخصاتو کښی ډیر فرق لری.

د بدن نور حجرات که له کاره ووزی بیر ته ئې عوض پیدا کیږی بوله سره څخه تولید کیږی خود اعصابو له حجراتو څخه چې یوه

خرابه سی نو که څه هم پراخ حجرات خپله د ارتباط سلسله د هغی تر شا سره ټړی لیکن خبره داده چې عوض نه قبلوی او پدی اساس نوموږ دزو کړی له وخته

څخه یو معین مقدار عصبی حجرات لرو چې کمیږی لیکن زیاتوب نه قبلوی.

اعصاب چې دخپلی وظیفی له مخی و کتل سی نو د اعصابو پر درو لویو اقسامو باندی موږ ویشیږو

۱- هغه اعصاب چی د احساس وظیفه اجراء کوی.

۲- هغه اعصاب چی د ماغزو اراده ئی فعالیتو ته ددوی په وسیله انجامیږی.

۳- هغه اعصاب چی د بدن اتوماتیکی چاری ددوی په ذریعه پوره کیږی.

د احساس د اعصابو په جمله کښی خوله د څکلو او خوند معلومولو د پاره دری زره مواد لری چی د هر یوه سلسله د بلی په واسطه د مغزو سره اتصال موندلی دی. غوږونه سل زره

سمعی حجرات لری چی د مغزو سره متصلی دی هره سترګه دلید لو یوسل او دیرش ملیونه نورنقلوی مفردات لری چی تر مغزو پوری د نور د انتقال وظیفه اجرا کوی د لمس د احساس موادو نو ټوله بدن سر تر پایه اخستی دی چی دیرش زره موادئی مغزو ته له ګرمی څخه خبر ورکوی او دوه سوه پنځوس زره ئی له یخه څخه اطلاع ورکوی او دغه شانی تقریباً نیم ملیون لمسی نقاط پکښی موجودوی هغه اعصاب چی ارادی حرکات لکه تګ خبری کول ژوول او نور ددوی په وسیله انجام

کیږی د خپلو وظایفو لپاره داسی ترتیب لری چی هر فعل چی د مغزو لخوا څخه ئی وړ دری ته امروسی نو دغه امر دیوه خفیف برقی احتزاز په شانی راشروع کیږی او په اعصابو کښی را تیریږی څوغړی په کار واچوی دغه برقی جریان خورا خفیف وی خود اعصابو په سلسلو کی داسی مرکزونه سته چی هلته چارج نسی او قوت اخلی څوچی د مطلب ترځایه پوری ځان رسوی د دغه حرکت سرعت چی اندازه سویدی نو په یوه ساعت کی ددوه سوه میلو په اندازه دی. کله چی یو حرکت له مغزو څخه

را شروع شی نو اعصاب ودی ته ګماری چی عضلات پر فعالیت باندی راولی. خو په عین حال کی یو مرموز قوت هم ورسره سته چی هغه ئی د فعالیت مانع ګرزی یا په بل عبارت که موږ د فټبال په وخت کی ګام پورته کونو باید پورته کولو ته موئی ادامه ورکولای لیکن د هغه مانع قوت په سبب دغه عمل دوام داره نه اجرا کیږی د خوب په وخت کی دغه مانع قوت پر مغزو پوره سلطه پیدا کوی ځکه که سړی غواړی چی وځغلی یا چیغی ووهی نو نه ځغستلای شی نه چیغی وهلاسی.

هغه اعصاب چی په اتوماتیکی ډول سره د هضم تنفس، زړه غوړځید نګ او نور داسی اعمالو وظایف اجرا کوی ددوه ډوله ته وېشل سویدی یو قسم ئی «سمپاتیک» بل قسم ئی «پا راسمپاتیک» نومیږی «سمپاتیک» اعصاب اعضا پر فعالیت راولی او «پاراسمپاتیک» ئی فعالیت را ګرزوی څو پدې ترتیب سره د حیاتی فعالیت موازینه قائمیږی مثلاً که زړه یوازی د «سمپاتیک» اعصابو تر کنترول لاندی راسی نو به له چابکه یو مخیزه ضربانه څخه فم ګټ ته ځان ورسوی او که یوازی د «پاراسمپاتیک» تر لاس لاندی سی نو ټپ ودریږی او بنور به نه ځنی وخوری.

جاری شواهد داسی وائی چی دغه دوه قسمه اعصاب یو کیمیاوی دستګاه ده چی په بدن کی کیمیاوی تولیدات کوی.

سمپاتیک اعصاب یو ډول مواد تولیدوی (NORADRE NALIN) نومیږ او پاراسمپاتیک چی (ACETYLCHOLNE) نومیږی.

موږ ددغو بیخی کوچنو ټواجزاؤ په

(پاته په ٩ مخ کی)

ښاغلی «خادم»

# د پښتو په تاریخ یوه رڼا

جنبش دی حرکت دی په مغزو د پښتنو کښې
څه نوی فلسفه کمال ته رسي لوړوغر کښې
خادم

مخکښې تر دې چې په مدعا کښې ور ګډ شم د یوې خبرې ذکر لازم بولم. یوه ورځ په یوه لوی محفل کښې زموږ د وطن مشهور لیکوال او نامتو مفکر ښاغلي صلاح الدین سلجوقي چې په هغه وخت کښې د مطبوعاتو رئیس ؤ،

وویل: «هره ورځ هغه خبره چې د هر لیکوال په مغزو کې تېرېږي ښائي چې غور پکښې وکي او قلمبنده يې کړي. ده وویل: او دا ځکه چې د دنیا ډېری اولی او لی نظر یې او مسلکونه په ابتداء کښې

هم دغسې وړې وړې خبرې وې، چې اکثر آبه خلکو پرې خندل!» پښتو ژبه ډېر اوږد او ډېر لرغونی تاریخ لري

دا تاریخ دومره اوږده سابقه لري چې ممکنه ده ډېر د علم او پوهې څاوندان د دغسې خبرو په اورېدو هیڅ ملتفت نه شي او باسنده يې وګڼي.

مګر دا عجبه خبره ده هماغسې چې قدرت د کائناتو په کوز او پاس کښې ډېر ډېر رازونه د انسان له لاس و هلو ځخه پټ ساتلي ؤ او ساتلي دي، دغسې برېښي چې یو له دغو رازونو ځخه د پښتو ژبه او د پښتنو تاریخ دی پدې باب کښې

تر اوسه چې څه ویل شوي او لیکل شوي دي په سلو کې به د یوه له حیثیته ځخه هم کم وي!

قدرت د پښتو ژبه او د پښتنو تاریخ د تیارو اعصارو ځخه د رڼې او نور عصر ور ځو شپو ته پرېښی

وو تر اوسه پښتو ژبه او افغانستان په ودانه نړۍ کښې داسې ؤ لکه یوه لویه پټه خزانه چې د ښامار له سیمې لاندې پټه پرته وي، او هیڅوک له ډاره او ترس نه شي ور نږدې

کېدای. پښتانه پخپله هم د متمدنې دنیا په مینځ کښې په رنګا رنګ اړیکو کې نښتي وو، او دا فرصت يې نه موند چې خپل د علم، ادب تاریخ ته مخ ور واړوي او س

داسې معلومیږي چې پښتنو ته د علم ادب او تحقیق دروازه پېرته کېدونکې ده، او دوی په خپله دنیا په خپلو سترګو ګوري. کوم وخت چې پښتانه د علم او ادب په رڼا د

خپلې دنیا لټون شروع کړ نو لکه چې قرائن او اثار اب ښکاره کوي عجیب او غریب اسرار او حقایق به را برسېره شي چې نړۍ او نړۍ وال ته به د پوهنې او فرهنګ له مخې

زیات فائده او ګټه ور سوي او تقریباً نوې دروازې به پرته کاندي!

دلته ډېري خبرې شته چې ټولې په یوه مقاله کښې ترڅېړنې لاندې نه شي راتلای

هغه چې زه يې دلته لیکم خو دا هغه د ښاغلي حسین بخش کوثر غوریا خیل «د پښتو فلالوجیکل تحقیقات» دي. دغو تحقیقاتو کې د حقیقت د رڼا لېری ځرېکې

لا وړاندې داسې بریښي لکه په توره شپه کښې چې ډېر لېرې په کومه هدیره کښې د کوم شهید په مزار ډیوه لګېږي حسین بخش کوثر غوریاخېل د پاچاخان د کلکو ملګرو څخه دی چې د پېښور په ښار کښې اوسي دی یو زلمی دی چې په نوي علم او مطالعه مجهز دی د تربیت او پښتني ثقافت د پخلنګی له خوا همدومره کافي ده چې سړی ووايي د پاچاخان دلارې ټینګ ملګری دی.

کوثر په خدائي خدمتګاري یا په بل عبارت د لوی پښتون مجاهد خان عبدالغفار خان په پل تللو باندې څو څو ځله بندي او قید شوی دی سختۍ او ناخوالۍ یې ګاللي دی. او لکه او سپنه چې توده او په ټکو نو ووهل شي، او سپنځړی تری لاړ شي او خالصه فولاد وګرځي، کوثر غوریاخېل د غسې شخصیت موندلی دی: پښتو، پښتونولي او د پښتون تاریخ د خدائي خدمتګارو د مرام مهم جز ده دی. ښاغلی کوثر په بند او زندان کښې خپل ماغزه د پښتو په فلالوجي او تاریخ باندې ستړي

کړي دی کوم وخت چې دانګلي او بوخ پښتون زلمي له یوا و بل بند څخه راخلاص شو او پخوا في سرخ پوش حسین بخش نه ق دا پېره ئې د پښتو د ژبې، تاریخ او زړو طلائي افتخاراتو نو په چوغه په سر لړ له. او د پښتو ژبې یو بې مثاله مجتهد او فلالوجست ؤ ده په بندیخانه کښې د پښتو د فلالوجي په باب خپل تحقیقات څه نه څه لیکلي وو او چې خپلو ملګرو او د پښتون او پښتو عاشقانو ته ئې وښود ل نو هغوی ورته حیران شول او اکثرو وویل «د کوثر په لاس پښتو ته خوایوه بې مثله خزانه ورغلې ده.»

د کوثر خبري او لیکنې لکه مرغلري چې له سیندهار او ایستل شي له خبره پوره پښتو ته ر اور سیدي، او د لته ورته هم پوهان د مرغلرو په قیمت قائل شول. د پېښور په ښار کښې د ځینې کور ونو ژبه هند کو ده پښتو د مجلس محفل او ادب ژبه ده ښائي چې د کوثر صاحب د کندۍ ژبه هم کور نۍ هند کو او د کوځې او محفل ژبه پښتو وي. کوثر به په اردو او شاید انګریزي کښې ښه لیکوال وي، مګر ده د خپلو لیکنو او آثارو

د پاره پښتو خوښه کړیده. دی پخپله اعتراف کوي چې زه د پښتو په لیک کښې ښه نه یم. مګر بیا هم وائي چې پښتو زما مورده او یوازې زما نه ده د انسانیت د لویو لویو ډېرو نو موروده نو ځکه زه په پښتو باندې بلې ژبې ته ترجیح له شم ور کولای. که څه هم پکښې مصلحت هم مضمر وي ده تر اوسه ډېرې مقالې او دوه مستقل کتابونه نشر کړیدي د دریم

کتاب وعده ئې هم کړیده. ددهٔ اول کتاب نوم[طوفان] دی. ددویم کتاب نوم ئې [ژوب ویشنه] ده او د دریم نوم به ئې [آدم د پښتون په حیث]وي کوثر ته پاک خدای

د پښتو د فلالوجي په باب یو د غسې بصیرت ورکړی دی لکه داروین چې به وویل، «زما دماغ د یو داسې ماشین حیثیت پیدا کړی دی چې له

کائناتو څخه کلیات او قوانین راغونډوي.»

کوثر ته د پښتو د فلالوجي بټي غوټې په مرموز صورت سره پېرته کېږي.

پښتو د زړګونو کالو ژبه ده چې ملیونو نه عالم ور باندې د آسیا په منځ کې ګړیدو او ګړیږي. د انسان د تاریخ او تمدن خو را مهیم

او سربسته اسرار په دې ژبه کښې تاو شوي پراته دي. او لکه د پښتنو د ځمکې په شان د پښتنو ژبه هم د لعلونو او جواهرو څخه ډکه ده خو که

ربښتیا ووایو نو د اسلام نه مخکښې تاریخ، ادب او آثار یې د حوادثو سیلاب وړیدي او د اسلام نه وروسته یې له

د ۲۶ مخ پاته

## عصبي نظام

سا کښلو ژوند کــوو چــي لــه دغي کيمياوي دستګاه ځخه پيدا کيږي او تر کار وروسته نو له منځه وزي د اسي ګرده فعاليتونه البته د ثانيي په يوزرمــه برخه کښي اجراء کيږي ·

سره له هغو ګردو حقايقو چي د اعصابو په باب کښي په لاس راغلي دي خو بيا هم محققينو ته لا ډير سوالونه په مخ کښي پراته دي چي تراوسه پوري ئي پرحل باندي موفق سوي ندي · مثلاً له هغه قبيله ځخه يو دادي چي ځرنګه لوي زو کړي ماشوم شو نهي سره پيچي او غذا خوړلو د پاره آماده وي.

که د عصبي نظام په باره کښي موږ په مکمل ډول سره و پوهيدو نو به موږ ودي خبري ته ورنژدي سو چي د عالم يو عالي معما مودی حل کړي وي او د ا به را معلومه سي چي ځــرنګه دغه د حجراتــو مجموعه د انسان په حيث سره دا ترتيب نيــسي چــي د انســاني موجوديت په ډول سلوک وکړي·

يو څو استثنا ئي دورو ځخه پښتو له دربار او سياست نه لري پاتي وه · بلکه زمانه دی ځای ته را رسيدلی وه چي خلکو پښتو ، ژبه نه ګڼله ، او بد بد نسبتونه به ئي ورته کول·

د هيڅ ادا تمه نه وه چي پښتو کښي به دومره لوی صلاحيت او استعداد ، او دومره رموز او اسرار پټ پراته وي · چي څو ډيرش ځلو پښــت کاله مخکښــي نا ځا په د پښتنو خپلي ژبي ته پام شو د خيبر او کوږك له تنګيو ځخــه بنکته پورته پښتانه دي ته راولاړ شول چي خپله ژبه دې د ادب ، علم سياست او قومي ثقافت ژبه وګرزوي . په دې باب کښي

هر اصيل پښتــون برخه واخيسته چي اوس د پښتو مقام ډير لوړ ولاړ · رښتيا داده چي د هيڅ قوم هيره شوی ژبه دومره ژر په پښتو نه ده دريدلی لکه پښتو ئي پښتو د ليك لوست ، علم ، ادب موسيقي ، سياست ، کتاب او دفتر ژبه لا ځه چي د دنيا د انټر نيشنل ثقافت او تاريخي تحقيقاتو دغــو بل موږی وګرځيد!

د کابل مجلي د ۳۸ کال د ثور په ګڼه کي د جاغلي کو ثر يوه مقاله د «هندو کش» د کلمــي د تحقيق په باب نشر شوېده چي ډيره عالمانه او خورا حاوي ده . په دغه مقاله کښي د هند ، هندو ، سند ، سندو انډو ، انډيا ، کش ، کس ، کڅ کڅوړه ، کشمير ، کاشغر ، قاشقار ، کسي غر ، سليمان غر او داسي نورو کلماتو باندي داسي منطقي مدلل او مثالي بحث شوی دی او لوی لوی نتيجي اخستل شوي دي چي سړی بي اختياره ور باندي آفرين وائي . په طوفان کښي

د کو ثر مدعا داده چي د فلالوجي په تدقيقاتو ثابته کاندي چي د آرين اولين ټاټوبی ، لومړنــی پاچا مخکښي نظام ، تمدن او دين ځنګه وو . او کوم شی چي طوفــان نــوح بلل کيږي چيرته او ځنګه و ؟ د ګل سرخ

ميله چي په مزار کښي کيږي او دارنګه د جنډو ميله چي په پېښور کښي کيږي د دوی تاريخي اهميت او نژديوالي وښئي . په دی کتاب کښي د پخوانو کالو تاريخ ، تمدن تهذيب ، ثقافت مهاجرتونو او رواياتو دغسي پخوانۍ

ایستل شوی دی، او داسې نکات پکښې حل شوي دي چې قلب او عقل ورته د لاچارۍ نه تسلیم کېږي او هیڅ لاره نسي پیدا کولی چې رد یې کاندي. او دی په عقل او تاریخي اسنادو داثابتوي چې لومړی محل انسان د پامیر په لوړه پیدا شوی دی.

او همدغه شاق خوا مځکې د هندوارپائین ږبو، اقوامو، تهذیبونو او ثقافتونو د خاږ پو ځو ځای او ځائنګو ګڼي.

ښاغلی کوثر په «ژب ویشنه» کښې خورا دلچسپي، نوې او د تحقیق وړ موضوع ګانې وړاندې کړې دي. زه د لته غواړم چې ښاغلی کوثر د ده په خپلو افکارو افغان د ژباته وښیم او له پلې خوا د ده نوی تحقیقات، فکورې او خدمتونه د ادب او علم ذوقمندانو ته مخکښې کړم چې دوی پکښې څه وائي.

ښاغلی کوثر لیکي چې په ۱۷۶۷ع کښې د فرانس «کوردوکس» نومي پادري لومړی ځل له هندوستانه د فرانس اکاډمۍ ته یو خط ولیکی او په هغه کښې یې د سنسکرت او لاتیني د لغاتو مشابهت او د ګرامري نژدې والی په باب تفصیلات ولیکل. مګر د غه خط څه تاثیر ونه ښندلو او چا اهمیت ورنکړ. د ده د مرګ نه ځلوېښت کاله وروسته نورو اروپائیانو لکه هرډ، مکس میولر، وهټني او نورو د سرویلیم جونز

د سنسکرت د پلټنې په رڼا کښې خپل تحقیقات چاپ کړل. سرویلیم جونز لومړنی اروپائی دی چې په سنسکرت کښې ئې معلومات درل. ده په کوښښونو په ۱۷۸۴ع کښې د کلکتې د ایشیاټک سوسائټۍ بنیاد کښېښودی شو چې مرام ئې د سنسکرت او د یورپ د ژبو مقایسه او مطالعه وه. داوه د سنسکرت او د اروپائي ژبو د (ژبپوهنې) لومړی رده

سرویلیم جونز د دغه سوسائټۍ په علمي مجلسو نو کښې یو وخت ویلي ؤ چې د سنسکرت، لاتیني او یوناني په منځکښې دغسې یو تطابق موجود دی چې یو ژبپوهاند و ناعلاجه ورځي دی نه اړ کیږي چې ووایي:

دا دری واړه ژبې د یو بیخ نه را ټوکېدلې دي. خو متأسفانه هغه بیخ او مور ژبه اوس ورک ده د ګاتي او کلټي او زړې پارسي یعنې ژند او پهلوي په باب هم دا خیال دی چې دا هم د سنسکرت سره سمون خوري لکه چې سرویلیم جونز ویلي ؤ چې د سنسکرت، لاتیني، یوناني ګاتي او کلټي ژبو مور پخوا مړه شوې ده همدغسې میکس میولر هم

وائي چې ما د سنسکرت د پوره مطالعې نه مخکښې دا ګمان کاوه چې سنسکرت ژبه په بنیادي او د نورو ژبو مور وی، خو چې غور مې وکړ نو را معلومه شوه چې د سنسکرت ژبې مور یوه بله

داسې ژبه ده چې په هغې کې مادر ته (مور: MOER) وائي خوافسوس چې هغه نن د دنیا په مخ نه ده پاتې!- مګر دا بیچاره ګمان څه پو هیدل چې دغه مور لا تر اوسه ژوندۍ

او په قوت کښې ده!؟

د پورته خبرو نه خودا څرګنګې چې د هندوارو پائی ژبو مور مړه نه ده ژوندۍ ده

مګر د لته یوه بله کشاله پیدا کېږي چې ښه دا کوم ځای او کوم ټاټوبی ؤ چې هلته

هندي ارین، یونانیان لاتیني قومونه ګاټ او کلټي ولسونه یو ځای اوسیدل چې هلته د اټول یو قام حسابېدو او یوه ژبه ئې درله چې د هغې نه دغه پورته ټولې ژبې جوړې

شوی، اوو ز پرېږدی!! کوثر صاحب د دغه کشالې پرېکړه داسې کوي چې وایي: د میلاد نه د شپږ نیم زره کاله مخکښې دا ټول قومونه په یو ځای او

يو هيواد کښې اوسېدل دغه ځای په ټکي معلوم نه دی. خو له تحقيقاتو او پلټنو وروسته دومره خبره جوته ده چې دا ځای د بلخ يا د بلخ او د آمو د سرچينې په منځ کښې تقريباً د بدخشان په حوالي کښې کوم ځای ؤ. د کوثر په خبرو کښې چې کوم شی د دقت او غور وړ دی هغه دا دی چې دی وائي: د کوم وخت چې آريه هندوکش غره ته نه ؤ رسېدلي او په خپل منځ کښې يې اوصلي ټاټوبي کښې د خپلو نورو وروڼو سره يو ځای اوسېدل، هغه وخت دوی ته آريه نه ويل کېدل. بلکه کوم وخت چې دوی په مهاجرت د هندوکش له غره څخه را او ښتل او د غلته ئې ديره و نيوله. نو ځان ئې په اريا سره ياد کړو.» زموږ کوثر وائي چې «دا زما دعوی ده او زه به ئې په يو بل کتاب کښې په اثبات ورسوم چې کوم وخت آريه د خپل اصل او بنسټ سره يو ځای د يو نسل په حيث اوسېدل هغه وخت دوی «پهستون»، «پرسون: PRISTIN» فلسطين، «پاستان» «پهتون» - «پهتان» - پرتون» - «برتون: BRITON» «بټهان» کالټه - «کالت: CELT» خالدا و خالدی نه علاوه د پالي د حکمراني په ورځو کښې «اپه ګان» وغيرو نومونو سره يادېدل» خلاصه دا ده چې کوم وخت د اروپائي قومونو د يو نسل په حيث په يو ځای کښې چې هغه يا بلخ يا د بلخ او سردرياب په منځ کې کوم ځای دی اوسېدل، هلته آريه نه بلل کېدل. هلته دغه نومونه او اطلاقات ؤ چې مخکښې مو ويل شول، او تر اوسه يې آثار او نښې په پښتو ژبه کښې ښکاره او څرګندې دي. آريه د هجرت نه مخکښې آريه نه بلل کېدل. دا يوه تاريخي غلط فهمي ده چې ډېر خلک ور باندې مبتلا شوي دي. که نو د آريه ؤ د هجرت نه مخکښې کوم وخت چې په باختر يا د هغه په شاوخوا کښې پراته ؤ، د (پهستون: پښتون) په نامه يادېدل او دا ځکه چې د آريه ؤ د هجرت نه مخکښې له دغه ځايه د پښتنو نور ډېر وروڼه لېږدېدلي ؤ، او د دوی په خپل ټاټوبي ستانه او پاتې شوي ؤ. او هيڅکله له خپل هيواده نه دي تللي او نه خوځېدلي دي.

کوثر صاحب وائي چې د سميريانو او ساميانو په مقدسو کتابو کښې چې د کوم طوفان ذکر راغلی دی، هغه طوفان هماغه دی چې دلته په باختر کښې واقع شوی ؤ. ځکه چې د پارسيانو مقدسه (واره) چې وروسته تر «نوبهار» جوړ شو د بلخ په علاقه کښې د سخي د مزار په ځای کښې وه لکه چې دد په باره کښې ويل کېږي چې داوره يما «جمشيد» نومي رب النوع ودانه کړې وه چې بيا انګرا مينا (شيطان) د يمه په دغه ودانه کړې واره دوا ورو يو طوفان را وستو او کوم بندګان چې ده پيدا کړي ؤ، ټول ئې ئې وو ژل.

چه په دغه واسطه سره جمه (يمه) د نوي واري د جوړولو د پاره سوئيل نمر پر يو اته خواته واېږديدل او دغه سوئيل نمر پر يو اته خواوی د پامير د غره لمنې دی. دغه د افغان، آريه او هندو اروپائين قومونو مولد دی.

ښاغلي کوثر وائي چې د بنګال د تاريخ يو پروفيسر اوس اوس په خپله يوه مقاله کښې ليکلي دي چې د هندوکش غره په څوکه لومړنی انسان ظهور کړی دی کوثر صاحب وائي چه دا خبره ځکه د توجه وړ ده چه د فرانس لرغون پوهانو د دغو غرو په سمڅو کښې څه داسې اېره او سکاره پيدا کړېدي چې د کيمياوي تجربې له مخې يې عمر شلو زرو کالونو ته رسېږي له دغو څخه د لاس ته راغلي چې د غلته انساني آبادي ډېره پخوا شروع شوې ده او له دې ځايه مهاجرتونه شوي دي. د افغانانو لومړني ټولي چې د سميري په نوم يادېدو د حضر مسيح د ميلاد نه شپږ نيم زره کاله مخکښې د خپل افغاني مولد نه هجرت وکړ چې جنوبي ايران ته

ورسیدو، نو دلته ئې یو ټولی د ګېډروسیا په لار سند ته را کوز شوه او دلته ئې په موهنجو دیړو کښې استوګنه اختیار کړه. دا ټولی د (براهوئي) په نوم یادیږي او س هم د «بروهي» په نامه یو قوم د قلات په ریاست کښې سته ددوی ژبه هم په «بروهي» شهرت لري. ددوی بله ټولی چې ګېډروسیا (بلوچستان) ته نه ؤ راغلی دوی د دجلې او

فرات په منځکښې د استوګنې ځای غوره کړ او د نړۍ د ټولو نه زړو تهذیب: «سمیري تمدن» ئې تاسیس کړ سر لیونارډ دا خبره لیکلې ده چې کوم وخت سمریان د تمدن په عروج کښې ؤ هغه وخت مصر وړو وړو خانانو په خپل منځکښې ویشلی ؤ. مدعا دا ده، چې سمیریان او د سند براهویان شپږ نیم زر. کاله مخکښې له میلاده له افغانی ټاټوبی نه په لومړنی ځل لیږدلی دی. د سمیریانو او براهویانو د هجرت نه

دوه زره کاله وروسته یو بل هجرت هم شوی دی دا انشعاب هم له افغانی مرکز نه دوه لاری نیسی یوه لار هغه ده چې د باختر نه جنوبی روس او د کیسپین دریاب په غاړه غاړه وسطی یورپ او د ډنیوب دریاب ته رسیدلی ده له دې لاری نه کلټ، سلاوی هلاسی (یونانی) او ټیوټنی ځانګی شمالی یورپ، مشرقی روس، او د نوری بحیرې په

لارې یونان ته ورسیدی. بله لار د هندوکش نه لمر پریواته یعنی ته وه. کومه ډله چې دلته را رسیدلی وه، هغې په ځان د آریا نوم کښېښود. او دلته ئې د ودانی بنا کړی تر دې چې بیا په دوو برخو وویشل شول. یوه برخه د هندوکش په درو کی قطب لمر پریواته هندوستان او جنوبی افغانستان ته لاړه او دې نوی ملک ته ئې «آریانا» ووایه. د دغو

خلکو یوه بله برخه د ایران په لاره د باسپورس د آبنا، او د دانیال د دری له لولوری یونان او ډنیوب ته او بیا وسطی یورپ او جنوبی یورپ ته لاړه، له دغه ځایه د ترکیې د جنوبی سواحلو په غاړه غاړه د ارمینیا د غرونو په لار نوری بحیرې او د فرات او دجلې سرچینو ته ورسیده.

دلته د آریایانو د انشعاب په باب یوه بله نظریه هم شته مګر دغه انشعاب ته باید اریائی انشعاب ونه ویل شی. ځکه چې د آریا نوم هغه ډلی ځان ته خوښ کړی ؤ چې د افغانی زیږندوځی نه جدا شوی ؤ او په جنوبی افغانستان او شمالی مغربی هند کښې پراته ؤ. نو کوم مهاجرت او انشعاب چې د افغانی ټاټوبی څخه راسا او مستقیما

راغلی دی نو دغې ته افغانی انشعاب ویل په کار دی هغه ډلی چې د افغانی ټاټوبی څخه تللی او په دنیا کښې

میشتې شوی دی او هلته ئې ځان ته بیل نوم او نښان او تهذیب او تمدن پیدا کړیدی د اټول د اریا په نامه بلل ندی په کار، بلکه هر یو په خپل

نامه باید وبلل شی او په وړاندې سر کښې ټولو ته افغانان ویل په کار دی دغه

نظریه د مهاجرت قصه داسی بیانوی چې د باختر نه مهاجرت د دوو ډلو شروع

کړی ؤ یوه ډله مغرب ته او بله د جنوب شرق خواته

روانه شوه لومړی ډله د کسپین په غاړه دیره شوه. مګر ډیر ژر د ورشو ګانو د

لټون د پاره په بیلو بیلو ډلو وویشل شول او د یورپ په لویه ځمکه ئې قبضه وکړه له دوی څخه او له ډله د (کیلټ) په نوم یادیده چه د ډنیوب د

دریاب په غاړه ئې ورشو ګانی ونیولی. ددوی پسی د ټیوټ-ټنیانو ډله راورسیده او

کیلټیان ئې په مخه کړل او غرب ته ئې آرویلز، آئرلینډ

او سکاټلېنډ پورې وځغلول، او د نیوب غاړې ئې تری واخیستې.

او د کسپین د ولس دریمه ډله «د سلاوی» په نوم یادیږي دې ډلې قطب پلو مخه کړه او په روس ئې قبضه وکړه او د روس نه الیریا پولېنډ، بوهیمیا او نورو ځایو ته ولاړل. په یونان «هلاسی» قبیلې قبضه وکړه.

په اټلی او جنوبي یورپ یوې بلې ډلې خیټه واچوله او دغلته میشت شول. البته هغه ډله چه له ابتدا څخه جنوب مشرق ته روانه شوې وه له هندوکشه واوښته او ځان ته ئې آریاوویل او د اباسیند په ښکته پورته کښې میشت شول. د آریاد انشعاب پورته دوه نظریو کښې او له هندوستان د یو زوړ مؤرخ پروفیسر ایشور داس ایم، ای ده او دوهمه د یو انګریز ژبپوهاند ایف جي، او، ایم ای د تحقیقاتو نتیجه ده. مونږ ته دغه دویمه سمه ښکاري. تردې وروسته ښاغلي کوثر د دې خبرې سپیناوی کوي چه ښه! هر کله چه پښتو د هند اروپائي ژبو مور ده! نو دا څنګه کیدای شي چه پښتو دې په اوه اته زرو کالو کښې خپله اصلي بڼه ساتلې وي؟

دې وائي زه هیڅکله دا نشم ویلای چه دغه نننۍ پښتو دې هماغه د زرګونو کالو مخکښې پښتو وي. مګر دومره ویلی شم چه په دغه موجوده پښتو کښې د قدیمې او پخوانۍ پښتو نښې او نښانې په غوره فکر او تعمق سره ارومرو لاس ته راتلای شي. دې وائي زموږ په موجوده پښتو کښې د هندو اروپائي د نورو ژبو څخه زیات صلاحیت موجود دی چه د هندو اروپائي ژبو د مور زیاتې نښې علامې او کړه وړه دې موږ ته په لاس راکړي. او دا به هم بېځایه نه وي که موږ همدغې پښتو ته د هندو اروپائي ژبو مور وو ایو ځکه چه د مور په کور کښې همدغه ژبه پاتې ده. د فقه اللغه ګرامر او فلالوجي په اساسونو د پخوانۍ بنیادي «پښتو ادبي» پته په ښه شان ور کوي. او دا ځکه چه ژبې، عادات او رنګونه هغه وخت بدلیږي چه په جغرافیائي محیط کښې تغیر راشي. مګر تر کومه حده پورې چه مونږ پوهیدای شو د هندوکش او پامیر د ساحې او لمنو په جغرافیائي وضعیت کښې څه ډیر تغیر نه دی راغلی. هماغه واوري هماغه بارانونه. هماغه لوړ غرونه او هماغه سیندونه، ایلبندونه او یخنۍ او ګرمۍ به په تغیر سره موجود وي. نو هیڅ شک باید ونکړی شي «قدیمې پښتو» چې د ټولو هندو اروپائي ژبو مور ده او په خپل زاړه کور کښې پاتې ده. هغې دې خپل پخوانی شان او شوکت ساتلی وي!!!

کابل

---

دمړو اد ټولو نه
غوره وینا وې

د لوړوالي او ترقۍ لار په معنوي امورو کښې د وجدان په ندا سره ده که د تاریخ پاڼې وګورئ نو تاسې به دا راسره ومنئ.

هیڅ قوم بیله کاره څخه ولوړ ځای ته نسی رسیدلای او هیڅ ادعا بیله عمله بې د جوش وخروش څخه په ړکه د دنیا کښې د قبلیدو ړ نده تجربې ښکاره کړیده چې د تاریخ لویو حوادثو هغه قومونه چې د کار پرقوه ئې تکیه کړې وي ندي مات کړي نو باید کار وشي او سړی مخ ته ولاړ شي

تر دې لویه شرمندګي نشته چې سړی ګناهکار وي او خپلې ګناهوې په بې پروائي سره اجرا کوي نو یقین وکړی چې د دې غفلت سزا به وویني او بیا به کټ ساز نکړي.

د سپرژ باب:

# د انسانانو بیل نژادونه څه ډول تشکیل شوه ؟

که موږ د بشري تاریخ وپاڼو ته ځیر سو نو دا به را ته ځرګنده شي چې د پخوانیو انسانانو ژوند د سیندونو او دریابونو په غاړه کښې تیر بدی. او د زمانو په تېر بدو سره د اقلیمي شرایطو د ایجاباتو سره سم ئې د ژوندانه په مختلفو چارو کې د احتیاج له مخې پرمختګونه حاصل کړه. دوی لومړی کښتګري زده کړه او حیوانات ئې د خپلې ګټې لپاره کورني کړه. او اوس چې د مځکې پر مخ

ژړ پوستي، سور پوستي سپین پوستي او تور پوستي نژادونه سته. په واقعیت کښې په آسانۍ سره نسو کولای چې د مځکې د مخ ټول له خلکګ پر دغه ځلورو نژادونو باندې وویشو. ځکه چې

د زمانې په تېر بدو سره د انسانانو مهاجرتونو له کبله نژادونه هم یو د بل سره ګډ شویدي چې اوس ډېر خلکګ په مشکله سره د یوه سړي نژاد خپل ځانته معلومولای شي.

پوهان عموماً د انسانانو جمجمه اندازه کوي او د دغې اندازه کولو له مخې کولای شي چې د هر سړي نژادونه پیدا کړي.

همداډول نوري بېلې لاري هم د نژاد د پیدا کولو لپاره سته. اوس بېرته دې موضوع ته را ګرځو ځرنګه چې ټول له انسانان ولمړني انسان یعنې ادم (ع) ته تکیه کوي د دغه بیل نژادونه څه ډول منځته راغلل؟ او اوس ولې د مځکې پر مخ دومره زیات نژادونه سته؟ ویلای شو چې یو آلماني و ګړي د یوه تور پوستي سره بېخي ډېر فرق لري. ځکه الماني سپین پوستي او دا بل تور پوستي دی.

د الماني وریښتان کم رنګه او لوی دي مګر د تور پوستي وریښتان تور او لنډ دي. او همداډول د دوی د واړه د یوه چیغي انسان سره زیات فرق لري. علاوه پر دې که موږ ډېر ځیر شو د یوه سړي که اته اولاده وي د دغه د اولادو په رنګګ او پوستکي کې ډېري نخښې موندلای سو خو بیا هم ځینې دلایل سته چې اوس به ئې ذکر کړو.

دا ځرګنده خبره ده چې ټول له انسانان د مشتر کو نیکه ګانو اولاد دي که تور پوستي دي او که سپین پوستي، که سور پوستي دي او که ژړ پوستي خو دغه نژادونه چې اوس ئې موږ مشاهده کوو هغه ورستي تغیرات دي چې د پخوانیو انسانانو په اولادونو کښې د طبیعي او جغرافیائي اوضاعو او د منطقوي شرایطو د سړو او تودوخو په نتیجه کې منځته راغلل.

دا یو طبیعي امر دی چې هر ژوندی چې په یوه محیط کښې ژوند کوي مجبور دی چې یا به په خپله د محیط سره سازش کوي، یا به محیط ته تغیر ورکوي او بیله دې دوو حالتونو څخه ئې ژوند پر خپل حال ناممکن دی

نو کله چې لمړني انسانانو د مځکې پر مخ په مهاجرتونو لاس پوري کړ او د مځکې و بیلو بیلو سیمو ته ئې کوچ شروع کړ او په بیلو بیلو برخو کښې ئې خپل ژوند تیر اوه نو هري ډلې چې په هر ځای کښې ژوند کاوه د اقلیمي شرایطو په لحاظ ئې د هغه ځای د جغرافیائي او طبیعي محیط سره به ئې حتماً سازش کاوه چې د هغه محیط د تاثیر په نتیجه کښې بیل نژادونه د رنګګ او پوست پر اساس پیدا شوه.



## نوی خیال

رشاد

### زړه‌ته !

آزما دغم زخمی زړه !
وهدهرېول زړه‌سوی زړه !

چی دژوند پدام می اخ کړی     دوېري برخی تا نه درکړی
ژوی تل په پرېشانی کښی     په تورتم دحیرانی کښی
په هرآن کښی دژوندون ستا     نوی کیږی شوا خون ستا

ستادی‌غم‌شی مبارک‌زړه !
آزماله شنوخته ټ‌ک زړه!

دبېلون پراور کرېږی     لکه‌شم سوځی نلېږی
اوردی واخلی‌زندگی‌ستا     دا دهردم ناکامی ستا
هرمطلب درته‌عنقا شو     مخ‌دی‌یومخ پر جفاشو

آدتورو وینو غوټی !
کلوی څو دژوند ترو ټی ؟

نه‌دی‌وکړ له‌بنادی څه     په‌دې ژوند کښی آزادی څه
ژوندون‌مه بولی داغم‌دی     فقط‌نول اودی الم‌دی
هرکړی‌یاس‌و هرمان‌دی     مسمی دژوند (ارمان دی)

آدسوز گداز کوټی زړه
آزما ټوټی ټوټی زړه

عبدالحکیم «شیدا»

# په حجاب ګل



کله ستا سره سیالي کړي د ګلاب ګل
ستا له شرمه څخه ګرځي په حجاب ګل
د ګل څوورځي دوران دی خزانیږي
له ښائسته څخه د لمـــــر اخلي تاب ګل
چې د دوبي د ګرمــي چپاو پر راسي
په ابداره کنډاله کښي شي کباب ګل
د سر سرد بیرحمي ئې پاڼي توی سوي
نن دی وینې سبا بیده د مرګ په خواب ګل
د نوکانو په چړو ئې غوڅ قلم کی
یو نفس چې عمر تیر کی په عذاب ګل
د ګل چیري زده خبري چې ئې وکړي
د بلبل د سواله څه ور کړي جواب ګل
ستا ښکلاته ګلاب واړه سجدې کړي
د ښه مخ په مقابل کې دی سراب ګل
نه په ستا د مستو سترګو کیف پیدا کړي
که د ټول جهان وچښي شراب ګل

زه «شیدا» پر هغه ګل باندې شیدا سوم
چې په سر کښې د ی ستا یلې د کتاب ګل



ښاغلی «منصف»

# فریاد

روغ زړګی می هغه چا کی ټوټې کی
چی ئی خپوری پر جهان دښائست کوکی
پر میدان دامتحان به ور ښکاره کړی
په صندوق کی دځګر زړه نوکی نوکی
یاوشتلی زړه به هیڅ کله روغ نشی
طبیبان کــــه ئی په سل ځله رپو کی
په کرم ئی علاج و کــــړه مهربان شه
ددرمل چاره ئی شته ستا په دارو کی
دهجران رنځور په هغه صحت مومی
معشوقه که دوصال وعده پرپو کی
کامرانی به په نصیب دهغه چاوی
چی وځان ته ئی بللی وی ملو کی
د قیصر ددارا جــادی تـــــر جارشی
عظمت ته ئی دوی ایسی ډیروړو کی
داسنبل و ګل ګلاب دی لاس ترغاړه
که دیار پرسپین زنخ دزلفو ځوکی
یا به خوږ کړم دزړه سر ستا په سروشونړو
یا به خاوری کم په درکی ستا هښو کی
داجهان لکه زندان شوو (منصف) ته
شته عجیب غوندی تاثیر ستا په جادو کی

زنده ګی دی نور ځه نده — د ګرو مو نو مجموعه ده
واړه ددی درمان نشته — هیڅ دی (کړ) ته پایان نشته
دغم ژوند ځه په کار ندی — لدی ژوند نه مرګ ډیر ښه دی

(جواب)

ولی ما لګی دوړوی بیا
پرپرهارمی دوړوی بیا

سر ترپایه درد داغ یم — بس دسرو وینو ایاغ یم
ځه غندی داخواشینی می — دغه ټول او پریشانی می
ما منلی داخواری ده — دادمینـــی بیماری ده
ثبات ښائی میړنو ته
خاص بیاټو پر (مینوزړو) ته

ښاغلی محمدعلی «خواجه»

# دمینې لېونی

زړه‌می لېونی شو لېونی ګرځي مجنون‌سره
اوښکې می سیالی کړي د قلزوم او د جیحون سره

اوښکې می بهېږي که باران د نوبهار دی دا
وینې می د زړه دي که پیدا کښې لاله‌زار دی دا
ستا ښائسته مخ دی که د سرو ګلو ګلزار دی دا
خدای دی نظر مکړه هفت رنګي لباس ګلګون سره
زړه‌می لېونی شو لېونی ګرځي مجنون‌سره

ستا دعشق صیقل سره می زړه مصقل کړی دی
ستا دمینې دردسره درمان‌می بدل کړی دی
ګفت دپیر استاد باندې دعشق می عمل کړی دی
شومه لېونی ځکـــه دمینې د جـنون سره
اوښکې می سیالي کړي دقلزوم او د جیحون‌سره

زړه‌می ستا دښې او پاکې مینې مظهر ګاه بوله
سترګې می وخپل ښائسته مخ ته نظر ګاه بوله
خیال‌می هـم‌دخپل عشق دپاره ګذرګاه بوله
زړه‌می دې درکړی دوفا په کلکه تړون سره
زړه‌می لېونی شو لېونی ګرځي مجنون سره

نه‌چې لې دحسن‌په جهان کې دسلطان په‌شان
زړه کې د«خواجه»لې داسې خوږ لکه‌ایمان په‌شان
مخ ته‌دې ولاړ په تحیر دې‌د حیــــران په‌شان
سرلې دتسلیم درته نـــن ایښی دزنګون سره
اوښکې می سیالی کړي‌دقلزوم او د جیحون سره





لیکونکی [و]

# بناغلی نعمانی

محترم مو لوستو نکو مو ته
خپل یو ملګری چې اختر
محمد نعمانی نو میږی تاسو
ته در پیژ نو بناغلی نعمانی
چې غنم رنګه کشمشی بڼه
لری دری څلویښت کاله
پخوا د کندهار دښار د
جنوب په څلور کیلو متری
کښې دیخ کاریز د کلی په
یوه علمی کورنی کښې
زیږیدلی دی دپلار نوم ئی
ملامحمداکبر اود نیکه نوم
ئی ملا محمد نعمان دی
چې ددری پښته څخه ملازاده
دی په پنځه کلنی کی یی
دتعلیم په زده کړه دخپل
پلار تر نظر لاندی شروع کړی
ده لکه څنګه چې ددغه کر کتر
څخه معلومیږی نعمانی
ورور د ژوند ډیری لوړی
او ژوری تودی او سړی
لیدلی اوډیر وخته دژوند
دسختو مشکلاتو سره مخامخ
سوی دی د ډیر بی وسیله ګیو
او بیچاره ګیو سره نعمانی



بناغلی نعمانی

خپل په ژوند کی دانکشاف او
پرمختګ لاره تعقیب کړی اود
زمانی هیڅ ډول بندیز و نو دده
لار خنډ نه دی ګرځیدلی دهغو
کسانو څخه دی چې خپل ځان ئی

په خپله روزلی دی زمو ږ دغه قلمی
ملګری ته دژوند په دوره کی ډیر
مشکلات ور پیښ سوی دی اودده
دغه دیدنی د نوموړی دپلارد
مرګه څخه شروع کیږی بناغلی
نعمانی لا (۱۲) کلن و او په اصطلاح

بنی او کین لاس ئی لانه و
پیژندلی چې دژوند دکار
اوزیار ډګر ته داخل سوی
دی که څه هم په دغو وختو
کی دی دمور او ورونو تر
سرپرستی لاندی و خو لکه
دی چې واړی دخپل ژوندد
دغسی جریان څخه راضی نه
و او دیوی مجهولی نیک
مرغی آینده په لټه کی
ګرځیدی.

دغه احساس بناغلی
نعمانی دی ته مجبور کړی
چې دپلار نیکه پیشه پریږدی
اوه کتابت او دفترداری په
زده کړه یو خت سی چې په
لوموړی سر کی دیوه عریضه
لیکونکی سره شاګرد سوی
دی ورپسی ئی بیا په مستوفیت
کی شاګردی شروع کړی ده
چې څه موده وروسته بیا
په هغه ځای کی لیکونکی
بیا دعسکری مکلفیت دوری
تر بشپړ کیدو وروسته د
کندهار د ټرانسپورټ د
اتحادیی په موسسه کی د

لیکونکی په حیث شامل شویدی بیاد کندهار په ښار والی کی مؤظف سوی اوس دوړ یود صادراتی شرکت د محاسبی د مدیر په حیث کار کوی .

د ه(۱۴) کاله پخوا وادہ کړیدی ښاغلی نعمانی یو محبوب سړی هم دی کله چی سړی دده سره په مجلس او صحبت کی مشغول شی دده ضمیر د پاکی او باطنی صمیمیت څخه پوهیدای شی .

دی سر بیره پر دی چی د شخصی ژوند او فردی اخلاقو په لحاظ ډیر ارام بیغرضه سړی معلو میږی د اجتماعی مسایلو او اصلاحی انکشافا تو سره زیاته علاقه لری د معارف پراختیا او تعمیم د هیواد د نیمګړتیا ؤ تکمیل او اجتماعی نواقصو د اصلاح لوی عامل ګڼی .

زمونږ نعمانی و رورد خپل همدغه اجتماعی قوی احساس له مخی د نویسند ګی او لیکوالی سره هم علاقه پیدا کړیده او کله کله خپل تاوده احساسات د قلم په څوکه باندی راوړی .

دی سر بیره پر دی چی په نثر او نظم لیکی یو ښه داستان لیکونکی هم دی چی ډیر واقعی داستانونه او خیالی نکلونه په وجود راوړی او له ډیر و کلونو راهیسی د دې ځای له خپر ونو سره قلمی همکاری کوی کله کله لیدل کیږی چی د دوی داستانونه تر اژیدی رنګ لری .

د دوی له آثارو څخه :

# د اجتماع په عدالت کی انسانان هغه دی

چی پر توسن د فلك زین ږدی محبوبان هغه دی
چی په اخلاص سره خدمت کړی ښه خاصان هغه دی

چی ځان چمتو کړی په ښه نیت سره خدمت ته د کام
بیله شبهی څه ئې منه لــوړ انسانان هغه دی

چی اولا د منع کـــړی د علم او عـرفا نه څخه
ورو سته پښېمان پر خپلو کړ ووی بد کسان هغه دی

چی په درو کالو کی سم نشی لنظیف نرخ او نوا
د ښاروالی وکیلان نـه دی نس ماران هغه دی

پیغلی چی کښینوی په کور کـی د پیسو د پاره
پدې ښه پوهـه شرمو ښان او خونخواران هغه دی

چی په ظاهر ئې لباس سم وی هـم ښه شان وعنوان
چی وی مضر د جامعی غټ شیطانان هغه دی

چی په ملت کی مزخرف رسم ورواج خوښوی
ماضی پسنده مشران او ښامـــــاران هغه دی

د تزویر لو مه چـــــی ئې ایښی د شهــــرت د پاره
خلك د سمی لاری باسی ګمراهان هغه دی

کوم چی په ژوند او مړینه یادشی په لوړ نوم د اسلام
د اجتماع په عدالـت کښی انسانان هغه دی

«نعمانی» وائی د اشعار مشاعری د پاره
کی ستر ګی پټی کړی نو سهوه او دیبان هغه دی

د عبد الصمد «نصرخوا» ژباړه

# ارسطو او د هغه فلسفي معضلې

ارسطو دمقدونيي د انساور په کلي کښې په سنه ۳۸۴ق م ميلادکې زيږېدلی دی د ده پلار نيکوماک نوميږی چې دهغه وخت دمقدونيي دحکمران يعني (فليپ) مخصوص طبيب ؤ ارسطو وروسته تر هغه چې لومړنی علوم ئې د خپل پلار څخه زده کړه په ۱۷ کلنی کښې داتن وښار ته راغی او هلته د افلاطون دشاګردانو په ډله کې شامل شو او پوره شل کاله ئې ددغه استاد علوم تعقيب کړه او. وروسته ئې د افلاطون ښوونځی يعني دفلسفي آکاډمي ئې پرې ښووله او ځانته پخپله دمکتب او فلسفي خاوند شو ځکه چې پدې وخت کښې ده علمي اقتدار او فلسفي شهرت پيدا کړی ؤ نو ځکه لوی سکندر چې ۲۵ کلن ؤ وده ته دروزنی او ښوونی لپاره وسپارل شو او همدغه سبب ؤ چې ارسطو دفليپ په دربار کې لار وموندله کله چې سکند دپلار پر ځای کښيناست نو ئې په فتوحاتو پيل وکړ ځنی وائي چې پدغه ټولو سفرو او فتوحاتو کې ارسطو د سکندر ملګری ؤ کله چې بيرته وطن ته راو ګرزېدی نو د نوېشتو يو لوی کلکسيون ئې مرتب او له ځانه سره يووړ چې وروسته ئې د(حيوانا تو د تاريخ) په نامه يو معروف کتاب وليکی مګر ځنی محققين پدې عقيده دی چې ارسطو پدغو سفرونو کښې د سکندر ملګری نه ؤ سکندر پخپله دخپل استاد دښوونی سره سم وارسطو ته يو کلکسيون مرتب کړ او سمدلاسه ئې ورته ليږه او ارسطو ددغو ليکنو له مخې د حيوانا تو او نباتاتو په برخه کښې په پراخه پيمانه معلومات حاصل کړل-

دتاريخی قرائنو او نښو څخه داسی ښکاری چې ارسطو د سکندر سره دشرق په جګړو او مسافرتو کښې ګډون نه درلود او په ټولو دغو وختو کښې په آتن کښې ؤ او دتفرجګاه په محله کښې چې په (ليکه ئون) سره يادېدی يو مکتب تاسيس کی او هلته ئې د فلسفي لوست ورکاوه.

ځرنګه چې د ارسطو فلسفي مکتب د (ليکه ئون) د تفرجګاه په محله کښې ؤ نو ځکه دارسطو مکتب د مشائيو نو دمکتب په نامه ياديده خو ځنې بيا دغه مکتب ددې له امله دمشائي مکتب په نامه بولي چې ارسطو به وخپلو شاګردانو ته د ګرځېدنې او حرکت په وخت کښې لوست کاوه ولې د ډيرو محققينو په وړاندې لومړنی احتمال صحيح ګڼل سويدی.

دغه لوی او لومړی استاد تر ډيرو ايجاداتو، تفکراتو فلسفي قيمتي آثارو وروسته د اوبه په جزيره کښې پدې تهت سره چې د نفي و خدايانو ته اعتقاد نلری په ۳۲۲ق م ميلادی سنه کښې د ۶۳ کالو په عمر مړ شو دارسطو فلسفي لوست دوه ډوله ؤ يو ئې علني او بل

ئې باطني ؤ چې اختصاص ئې د فلسفې پر شاګردانو باندې درلوده.

ارسطو ډېر کتابونه چې وروسته به ذکر شي تاليف کړل دغه کتابونه ده پخپله نشر نه کړل او ديوې وصيت نامې له مخې ئې و خپل شاګرد (ثوفراست) ته پرېښودل ثوفراست بيا د ارسطو او خپل ليکلي کتابونه و يوه بل فيلسوف ته چې (نله) نوميده پرېښوله خو وروسته دغه کتابونه د وراثت په ډول و نورو ناپوهو وګړو ته ورسېدل چې د هغوی له خوا په يوه کوټه کې کښېښودل شوه.

تر ډېرو کلو وروسته دغه کتابونه ديوه مستعد سړي له خوا چې (ايدليکون) نوميده راټول شوه او د ترميم وروسته ئې څو نفره مستنسخين وګمارل چې نوی نسخې و کمبودو ځايو ته نسخ کړي خو بيا هم دغې نسخې له خطاخالي نه وې.

په هر حال کله چې (سيلا) د روما ديکتاتور آتن و نيوی نود (ايدليکون) کتابخانه ئې مصادره کړه او ټوله کتابونه ئې روما ته يووړل (رودسی اندرونيکوس حکيم) هم هلته لاړ د استاد پر آثارو ئې ځنې اجمالونه او لومړی جلد اضافه کړې او نشر ئې کړه خو که د ارسطو وډېرو او متنوع عاليه مسائلو ته چې پدغو آثارو کښې ذکر شويدي ژوره کتنه وسی نو حتماً به داحکم وکړه سی چې ارسطو د پخوانيو مقتدېرينو او پوهو علماؤ څخه ؤ.

دارسطو کتابونه تر هغه حده چې زموږ ولاسو ته رسېدلي دي په لاندې ډول ښودلای شو.

(۱) منطق ياد مقلون مجموعه چې اورګانون او د روح مبحث دی.

(۲) دطبيعيه حکمت دی چې په اتو جلدو کښې دطبيعت د مختلفو مسائلو څېړنه کوی او دسماء مبحث په ۳۸ جلدو کښې دی دحيوانانو تاريخ دنباتاتو مبحث يو يو جلد دی.

(۳) ما بعد الطبيعه ۱۴ کتابونه دی.

(۴) دميکوماك اخلاق د (مسودم) اخلاق سياست يا اقتصاد او جمهوريت.

(۵) ادبيه قواعد او شعر يو يو جلد دی خو ددغو کتابو څخه د اورګانون کتاب ډېر شهرت لری ځکه د اکثرو منطقی کتابونو استناد همدغه اثر دی.

روح علم او منطق
د ارسطو په نظر کښې:

دارسطو په عقيده بشری معلومات دوه ډوله دی يو هغه دی چې بېله واسطې په مستقيم ډول دحسی تجربو له مخې حاصلېږی او بل په واسطه سره دی چې دقياس او محاکمې په توګه منځته راځی خو کوم شيان چې په احساساتو سره مستقيماً حاصلېږی هغه جزئی دی او کليات په اباالوسطه سره ادراك کوو. بشری معلومات له احساساتو څخه شروع او وروورو و کليه معلوماتو ته رسېږی او هغه نتيجې چې له دغو معلوماتو څخه منځته راځی په منطقو سره را ايستل کېږی. او هغه لاری چې شبيه حقيقتونه له حقيقت څخه بېلوی هغه منطقی قواعد دی يعنی منطق دعلم آله ده او تجربه د علم دراغونډولو لپاره لازمی ده علمی ترکيبات او اشکالات په منطقو سره فهمول کېږی ځرنګه چې د منطقو علم قواعد او قوانين اثباتوی نو ځکه دمفاهيمو

غیر اثباتي قابل مستند وي که چیري داسي نه وای نو ثبوت شوي دلائلو به هم یوه نا انتهائي سلسله تشکیلولای او له هغه ځخه به هیڅ نتیجه ولاس ته نه راتلای .

د ارسطو منطق پنځه برخو له ترکیب شوی دی :

[۱] مقولات
[۲] بیان
[۳] تحلیلات
[۴] موضوعات
[۵] محکمه

دارسطو مقولات په لسو برخو یا لسو مقولو ویشل شویدي چي دغه عمل دافکارو یو له بله دتمیز او تفریق لپاره ډیر ګټور دی .

لس مقولي پردغه مطابق دي جوهر ، کمیت ، کیفیت نسبت ، مکان ، زمان ، حال تصرف[ملکیت]فعل ، انفعال دمقولاتو سره د کلیاتو بحث چي داور ځانو سره ربط پیدا کوي هم اضافه کیږي او کلیات عبارت له جنس ، نوع فصل عرض او خاصه ځخه وي ارسطو نوع او جنس یو ځای مطالعه کوي او دهغه فرق دتعریف په توګه بیا نه وي او ویلي دي چي عرض ، جنس ، کیفیت ، خاصه باید مطلقا په یوه کښي ددغو لسو مقولاتو موجو دوي ځکه یوه جمله چي ددغو ځلورو عنصرو ځخه تشکیل شوي وي هغه به حتماً کیفیت جوهر یا بله مقوله د مقولاتو ځخه افاده کوي .

دبیان باب متعلق پر قضیه وي او قضیه پخپل ذات کښي دبیان آله ده .

د تحلیلاتو لومړنۍ قسمت قیاس او وروستنۍ قسمت ئي اثباتي مسئلي شرح کړیدي او ددغه باب په یوه حصه کښي وایي انسان یوازي داستقرار او اثبات پوسیله سره شي زده کولای شي استقراء د جزیي وقائعو ځخه ده او اثبات هم داستقرا په مایه کي د کلیه مبادیو ځخه منځته راځي او دا چي ولي دا قسمت تحلیل بلل شویدي سبب ئي دادی چي قیاسي مرکبه عناصر په هغه کښي تحلیل کشف او اراثه شویدي او هر باب چي دموضوعاتو عنوان لري په هغه کي بیاد احتمالي او مفروضي دلائلو بحث شویدي خود محاکمي باب دري فصله دی او دهغه په دریم فصل کي دمنطق دعلم یوه عمومي خلاصه درج او ځای شویده لنډه دا چي دمقولاتو موضوع فکر دی او د بیان موضوع حکم دی خود کتاب نوري حصي داستدلال او قیاس ځخه بحث کوي .

دارسطو نظریاب د تفکر د طرز په کلیاتو کښي متردده دی او بالعکس وائي چي تفکر د محسوسه آشیاؤ ځخه بالواسطه ؤ بلا واسطه هم نشست کوي او ددغه نظریه پدغه باب کښي کامله یوه احساسي نظریه نه تلقي کیږي ځکه په عین حال کي چي دی هرشي له احساساتو ځخه منځته راوړي منکر عاقله بیا دحساب دمبادیو ځخه بولي او هغه ته یوه خصوصي وظیفه هم تخصیص وي .

دارسطو په عقیده روح دبدن ځخه خارج موجود وي خو ددی لحاظه چي لومړی ګمان دی نو دوجود ځخه بېلوالی نه کوي او متعضي جسم هم مقدم تره دی په بل عبارت روح دژوند لومړی قاعل دی او په وجود کي چي هر ځو مره وظیفي موجودی وي په هم هغه اندازه (انتلطیا) هم موجود دی خو یو ددغو انتلطیاؤ ځخه دتولو یوالي او مربوطیت تأمینوي [نور بیا]

لیکوونکی رهبر فاروقی

مترجم ښاغلی عبدالقدوس [ن]

# دالماسو اصلیت او ماهیت

## لومړی فصل

دڅېړی دسکرو او الماسو ترکیبي اجزاو فرق ډېر په تاسي ځوله دحیرت په ورته کښي واچوي مګر هوښ کوي چې حیرت ونه کی د دغني ورځي مدقق پوهان دا دواړه یوه ماده او دکاربن دوه صورتونه ئې ګڼي دقدرت کارخانه ددوی دهر یوه ترتیب ترخپلې منشأ لاندې جلاجلا په مخصوص ماحول کښي کوي ترهغو پورې چې یو کوېله (دڅېړی سکاره)

اوبل الماس کېږی. دا قیمت داره جوهر (الماس) اوله پلاده فرانسې یوه زبردسته عالم چې (لواز) نومېدی تحلیل اوڅېړنه ئې د هغه پټ اسرار څرګند کړه. ګرانو لوستونکو او محترمو مسلمانانو نو پدې ځوله محققین دخپلو علمي او ساینسي تدقیقاتو په لار کښې د مسلمانانو پخوانی علما دځانو لار ښوونکی او استادان.

ګڼي او پردی باندې قایله دی چې (دغربو حکما ددې قیمتي جوهر داصلیت او ماهیت لمړني مکتشفین دي)

زه پدې ځای کښې دمثال په توګه د (داؤد انطاکی) هغه تحقیق چې دالماس په باب کښې ئې کړیدی دده له مشهوره کتابه څخه (چې تذکرة اولی الالباب الجامع للموجب العجائب) نومیږي دمثال په ډول رانقلوم.

انطاکی لیکي چې دالماسو اصلي ماده رصاصي وی فرانس جان سن پخپله ډکشنري کې هم دده دقول په تائید کښې لیکلي دي چې رصاص دوه ډوله دی یو ئې سپین او بل ئې تور:

قلعي، قصدیر، او تور د سپینو انماسو له جملې څخه صرف ابار، او شیشن تور الماس دی.

په پخوا زمانو کښې څکه چې دڅېړی سکاره ډېر کاخت وه نو لدی سببه څخه انطاکی د هغه اصلي ماده د رصاص اسود څخه ګڼله.

په ابتدا کې پنسلان له همدغې مادې څخه جوړیدل نو له همدې امله عربو پر پنسل باندې د قلم رصاص نوم کښېښودی. پسله ډېری زمانې څخه بیا له ګرېفایټ څخه د پنسل جوړېدو رواج شوه.

ګرېفایټ د ډبرو څېړو ډېرې ته وائي چې له [۹۵] برخو څخه بیاتر سلو برخو پورې کاربن لري دفاضل انطاکی د کتاب عبارت چې دالماسو په باب کښې ئې لیکلي دي دادی:

(ماس بالمهمله معروف من نفیس الاحجار تکون لیکون ذهبا فعاقته رطوبه «غلیظة» وحر مفرط فاشتد یبسه ومادته رصاصیته وموضع الهندی منه سرندیب).

دانطاکی پورتنۍ بیان ډېر جامع او تقدیر وړدی که څه هم مختصر او ددې جوهر پر ترکیب او تکون باندې ئې لږ رڼا اچولې ده

مگر سره له هغه او سني علماؤ دا نظريه پدې لار کښې ځانو ته مشغل بولي . اکثره له دوی څخه د

ډېرو د سکر و د الماسیدو د نظريې په لاره کښې مختلفي رائې او بیلې مرضاوې لري چې ځني له هغو څخه مونږ

ګرانو ویونکو ته په لنډه ډول سره راوړو:

لیونارډو د نړۍ مشهور ساینس دان چې ډېر عمر يې ددې مسئلې په شاوخوا کښې فکرو نه ځغلولی او عملي تجربې يې کړیدي

خپله نظریه‌دا ډول اظهاروي (الماس په دننه ځکه کښې د کاربن د بخاراتو له جوړیدو څخه پیدا کیږي) پیرټ بیاوائي یه‌داسي نده د کاربن پرته‌ولو ټوټو باندې داور له تاوډلو يدلو څخه

الماس په‌وجود راځي ځنو له‌دوی څخه بیا ددې عقیدې سخت مخالفت کړیدی او وائي چې د نباتاتي شیانو له اجتماع څخه تکوين پیدا

کوي ځني بیاوائي د ګرمۍ په کومك سره له کاربن یا کاربونیك اسیډ څخه جوړیږي .

دی جوهر ته په انګلیسي (ډائمنډ) په لاطیني ئې (ایډمس) په‌عربي ئې (ماس یا الماس) او په چیناني (چونسیاك) او په لنکائی ژبه‌ئي (بحرم) او په سانسکریټ کښې (بجر) ورته وائي .

# (دوهم فصل)

## دالماسو سخت توب

د ځمکې د مخ تر ټولو شیانو الماس سخت او کلك دی که تاسي يو د الماسو ټکر واخلي او پر فولادي سندان باندې ئې د فولادو په سټك په هر څومره فوق العاده قوت

سره و وهی ګمان کوم چې سټك او سندان به لا د کاره ووزي مګر ددې فلز د ټوټې پر مخ باندې به‌د موېك په‌ډول خال لا پیدا نکي نو هغه وخت به ئې صلابت او

ټینګوالی تاسو ته‌ښه‌تر اخر ګند شي مګر پدې‌ورځو کښې ځنې ساینسي پوهانو د دې فلز د ماتیدلو طریقې په مختلفو

کیمیاوي ډولو سره بیله‌ضرب او ټکولو څخه میندلی دی‌دالماسو دزرو کلو پاته کیدو موجب ئې ټینګوالی دی زما ددې مدعاد اثباط قوي دليل د کوه نور الماس دی .

# (دریم فصل)

## دالماسو کان

د نړۍ داقیمتي جوهر یادغرو په هسکو ککریو کې او یاد ځمکې په‌دننه برخه کې متکوین کیږي کله‌ئي ټوټې د سندونو په ژورو ځایو کښې هم میندل شویدي هغه‌وخت چې د غرو پرسرو

باندې زورور بارانونه واوري او د ځاځکو د اجتماع څخه شیلې جوړې او د کښتي وخواته په شرشر رابهدونکي شي دا قیمتي جوهر (الماس) د پورته څخه‌د ځانه سره را

کیل او د سیندو په اعماقو او وچو ریګو کښې ئې و غورځوي کنه اصلي د تکوین ځایونه خوئي دخاورو او تیږو طبقې دی‌ده‌هند باپره کته ځمکه چې د هر رنګه

جواهراتو منبع ده‌دالماسو ډېر کانونه لري ټوله محققین پدې باندې قایله دی چې دا قیمتي جوهر (الماس) لمړی‌وار په‌هند کښې میندل شوی‌دی چنانچه بناغلي (پلی) چې تر حضرت عیسی (۷۹) کاله وروسته

پیداشویدی زمادقول تائید
یدی اَلفاظو سره کوی: وائي
چې رومة الکبرا ته زموږ
تر زماني څو کاله دمخه
له هندوستانه څخه‌ژ الماس
رارسیدلی دی‌داخویقینی
او موثقه‌ده چې له ۱۱۴۱

سنې څخه پیاتر ۱۷۲۸ سنې
پوری د الماسو یوازنی
مرکز هندو په هندوستان
کښې خصوصاًدد کن جزیره
وزمه دجواهرو زیرونکی
اودالماسود کان خزانه‌وه
دالکښی ښارخو تراوسه
پوری خلک د الماسو د
کانو سرچینه‌ګڼی دتاریخی
دلایلو په اسنادزه‌داثابتومه
چې دنړی‌دجواهرویو لوی
تعدادپه‌دکن کښې میندل

شویدی‌ده‌دنیامشهوره‌الماس
چې کوه‌نور نومیږی اود
یو ـ عالم ګیره شهرت لرونکی
دی‌ددکن دبافیضی خاوری
یوه زره ده ددې جواهر
دزرو کالوزړی‌افسانی او
روایات‌دنن ورځی معتبره
مؤرخین نه‌منی .
والی که‌دا الماس هغه
الماس‌وی‌چې د(پیر جمله)
له کانه‌څخه‌راایستل شوی
او بیاشاه جهان ته دنذر په
توګه‌ورکول شوی وي او

یایوجز دهغه‌وی چې تیورنیر
تللی دی اویابرنیر لنوچې نی
ذکر کړیدی اومغل اعظم ته نی
منسو بوه‌وی نو لومړ نی او منځنی
تاریخی سلسله نی داعتماد وړ
نده اوپردی بانسدی محققینو
پر تنقیدونه کړیدی‌زه به‌هم
خپله نظر یه‌پدې باره کې دکتاب
په‌پای کې ولیکم خو اوس به‌په
اصل مطلب شروع وکړم .
د کوه‌نور حالات اوپوره کیفیت
ترحضرت‌عیسی (ع) دمخه

ځنی مؤرخین ددې الماس
پیدایښت تر حضرت مسیح (ع)
پنځه‌زره کاله‌دمخه ګڼی اودخپلو
قولو تصدیقو نه‌په‌لاندی‌روایاتو
سره کوی دکوه‌نورالماس څو
عمر د کشمیر د (بهوری شو

نومی راجادبازو بند ښائست ؤ
کله‌چې دکوریانو او پانړیانو
په‌منځ کښې جنګ و نښت نو موړی
راجاد(چخا بورا) کلاو نیو له او
دارجن لورلی چې پدې کلاکې
کلابندوه‌ومړه کړه .
ارجن چې دلورپه‌مرګ خبر
شو پرقهر ورغی او دادوهمه
ورغلی دغچ اخستلو په‌مقصد
سره له‌پوره لښکر پر کوریا باندی
یرغل راوړی پسله‌شدیده جنګه
څخه نا بیره‌دارجن غشی دراجا
(بهورشو) پر بازو باندی ومښتی
اوهغه‌لی جست په‌هوا کې (داهغه

بازوؤ چې کوه‌نور دبازو
بندپه‌ډول پر تړل شوی ؤ).
لنډه‌ئی‌داچې دامنحوس
جواهر ـ دجو لند ـ قچالی
یدشمر نوموپلاس‌ورغلی .
ځنی بیا وائی داهغه
الماس دی چې راجه کرن
به‌د طلسم دشګون په ډول
سره استعمالاوه او پنځه

زره کاله‌دمخه ترنن ورځی
چهلی پټـن ته نـژدی د
(ګوداوری) له‌سنده څخه
راکښل شوی ؤ .
زما په‌عقیده یو له صحیحو

روایتو څخه چې‌دزړه‌څخه
څکه کوی دادی:
داالماس د(راجاکرمادیته)
څخه‌ؤ چې ترحضرت مسح
(ع) نی ۵۷ کاله وړاندی پر
مالوه‌باندی حکومت کاوه
پسله مرګه څخه‌دهغه کورنی
ته‌د میراث په‌توګه پاته‌شو

څوهغه‌ؤ چې پسله پیرلاس
پرلاس کیدو څخه خلجی
علاوالدین ته‌د تارتوک په
ډول ور کول شـو ځنـی
محققین بیاوائی دغه‌الماس
دمالوی دراجاګانو څخه

ؤخو په‌هر صورت‌د کوه‌نور
تاریخی قصی له ۱۳۰۴ عیسوی
پیری راپدی خو ښی‌ونې دی.

## (د کوه نور د تسمیې وجه)

تر نادر افشار ترمخه دی الماس نوم نه درلوی کم وخت چې ده ته د تار توك په صورت ورکول شو ډیر روڼ توب او زیاتی ښکلائی سترګی ور تاریکی کړی نو له ډیری خوشحالی ډیری خوشحالی څخه ئی د (کوه نور) الفاظ تر خوله ووتله .

## (د کوه نور کان)

جی بی ټیورچی یو فرانسوی سیاح او د الماسو سوداګر و کله چی ئی د دکن د الماسو شهرت د اوریدی نو د لیدلو په غرض ئی د دکن ته رارهی شو او له ۱۲۴۰ (ع) سنې څخه بیا تر ۱۶۵۴ سنې پوری د همدی مقصد لپاره هلته چکر واهه.

که د کوه نور الماس په رښتیا سره د مغل اعظم یاد ده د بیان کړو جواهراتو یو ټوټه ده نو د نوموړی سیاح له لیکنی سره سم د (کولور) د کان څخه وتلی ده.

مګر ده د دی الماسو د ایستلو کومه نیټه لدی کانه څخه نده ټاکلی د کوه نور د کان ځای په د کن کښی د کرشنا د سیند پر غاړه دی چی په (۱۶) درجی) ۲۲) دقیقی او (۳۰) ثانیې عرض البلد او (۸۰) درجی (۵) دقیقی طول البلد کښی وقوع لری ټیورنیر دا لیکی چی دا کان له ګول کنډی څخه (۱۳) (۴ پر ۳) کوسه او له (مسلی پټم) څخه (۳۶) واټن لری یو بل سیاح چی (ولیم متهولس) نومیږی او په ۱۶۳۲ عیسوی سنه کی ئی د کن ته سفر کړیدی داسی لیکی چی د کوه نور کان له (مسلی پټم) څخه (۱۰۸) انګلیسی میله فاصیله لری مګر نور ګرزیدونکی ئی صحیح واټن سل میله بولی نو په هر صورت دا کان د الکنډی له مشهورو کانو څخه دی .

ولیم د خپلو مشاهداتو په لړ کی دا هم لیکی چی د دی کان د کار کوونکو شمیر یو لکو نفرو ته رسیږی د سلطنتی خزانی د کاله یو لك ټول زره پونډه عایدات راځی .

## د کوه نور منځنی تاریخ

د مدققینو په د کوه نور د تاریخ سلسله داسی ول بیانوی چی دا الماس اصلاً د مالوې د راجه ګانو څخه و هغه وخت چی خلیجی علاؤالدین په ۱۲۹۴ عیسوی سنه کښی د (یوګړهی) پر راجا باندی چی (رام دیو) نومیدی یرغل ورووړ او د هغه ټول هال ومال ئی چی جواهرات هم پکښی وه په چور او چپاو یووړ د هغه د جواهراتو په کیڅی کښی یو داتو یا نو مشقالو په اندازه الماس هم ؤ

د علاؤالدین تر مړینی وروسته د سلطان قطب الدین مبارك شاه ټولواکی چندانی پاینت نه کی پهدا او خسرو نومی مړئی په ۱۳۲۰ سنه کښی وواژه څه چی ئی کړیوه د هغه عوض ورورسیدی پسله ده څخه نو د خلجیو د کورنی کمبله ټر له شوه او پر مینه ئی څوك پاته نشول

نو هغه و وچی په (۷۲۰) هجری سنه کښی غیاث الدین په پاچهی سره وټاکل شو او د سلطنتی هال ومال په جمع کښی د کوه نور الماس ده ته پلاس ورغی کله چی د تغلق د کورنی په ما بین کښی د بی اتفاقی اور بل شو ناصرالدین محمد د شاه زوی د محمد شاه او نصرت شاه زوی د فتح خان پر تخت و تاج باندی توری سره وکښلی د ملت

امرا او حکام ځنی د دی او ځنی د هغه طرفدار شول دی کورنی جنګو تر هغو پوری دوام درلودی څو امیر تیمور پر هند باندی یرغل راوی.

نور بیا

د خواطر له عربی کتابه څخه

د نجیب ترجمه

# د خیانت جزا

دا قصه چې په ایټالیه کی پېښه شوې ده واقعی او د کومی مبالغې لرونکې نه ده زه ئې د کرانو ویونکو له پاره په دې ملحوظ د [القلم الجدیدی] له امریکائی مجلې څخه ترجمه کوم چې دوی د خدعه کونکو په خدعه او د مدنی دنیا د ځینو بې حیا ښځو په بې وفایی خبر شي .

جیوفانی یو ښکلی ځلمی ؤ چې د ایټالیې د ټاپو وزمی په یوه وړه وکی کلی کښې ئې ژوند کاوه ددې کلي اوسیدونکي ډېر ساده او له نوی تمدن څخه لیری واقع وه کرستیانا چې د ښه حسن او زړه وړونکی آواز لرونکې نجلۍ وه د جیوفانی شرعی ماندینه کېدله چې له خپل ځلمی مېړه سره ئې د غربت په حال کې ژوند کاوه د دنیا په نعمتونو او د عیش و عشرت په ژوند کې ئې هیڅ چرت نه وهه ددې دا خیال ؤ چې ټول لذایذ او خوندونه زموږ د محقر کوړ په ځلور دېوالو کښې حصر دی مګر افسوس چې ددوی دی آرام ژوند د یوه مکار او بې عاطفې موسیقار د خیانت او خدعې په اثر سره ډېر دوام پیدا نکړ او ژر د نکبت د بدبختی توره پرده پروغوړېده دا موسیقار چې ددې مسعود کور آرام ژوند ئې ګډوډ کړ (سینور) نومېدی او د «میلان» د ښار اوسیدونکی ؤ و نوموړی کلی ته د هوا تبدیلی او استراحت له پاره تللی هلته ئې د هغه ځای له اوسیدونکو سره شناخت پیدا شوی ؤ وا ئې خبیث سینور یوه ورځ د هغه کلی په کوڅو کښې ګرځېده د جیوفانی د کور پر حد ئې د کرستانیا زړه وړونکی اواز تر غوږو شوی غوښته چې دا ساده کلیواله مېرمن په چم و فریب سره وغولوی او د خپلی ډلی په غېږ وکښې ئې شامله کړی نو ئې ډېر ژر د خپلو احتیاطو په ذریعه له هغې سره تعارف پیدا شو او د ائې د لسو فرانکو د اجوری په مقابل کښې د یوی سندری ویلو راضي کړه ضمناً ئې د نورو مرستو ټینګه وعده هم ورسره وکړه ددې ډېری اجوری او درنو وعدو مېړه مینه او د شیرین عیال شفقت د کرستیانا له زړه څخه هیڅ وایستی او ودی ته آماده شوه چې په یوه مناسب وخت کښې له نوموړی موسیقار سره د میلان ښار ته د مېړه او کلیوالو په پټه ولاړه شي



یوه ورځ په داسې حال کښې چې جیوفاني د ګنیو دریملو دپاره د بحیرې وڅنډې ته تللی ؤ دې موقع غنیمت وګڼله او له موسیقاره وجینوا ته ولاړه هلته ئې د ښځاکالي او ځه نورشیان

رانیوله او سمدستي ئې د هغه په هدایت او لار ښوونه سره د میلان په عمومي تیاتر کښې خپل آواز ثبت کړ او د ډا نس په (هال) کښې ئې د ډېر و ځلمیا نو زړ و نه وګټل

ته‌ما یل کړه د میلان د ښار اخبار و په غټو حروفو سره ددې د هنر نسماي او ښه استعداد تعریف ولیکی او ددې د شهرت آوازه ئې د ډېر و وګړ و وغوږ و ته ورسوله پسله څو میاشتو ځخه د کرستیانا د څو فلمو دایکټ اجوره و ړنځه ویشت زرو فرانکو ته ور سیده

سمدستي ئې یو عالیشان عمارت په کرایه واخیستی او په هغه کې ئې یو مرفعه او عصري ژوند شروع کړ دې د عیشو نوش او فرحت و خوښي ژوندئې د میره او شیرین عیال مینه و محبت بیخي له زړه ځخه وایستی جیوفاني چې د ګنیو ریملو

له پاره د بحیرې وغاړې ته تللی ؤ مابښام په داسې حال کښې چې لو پلنړه‌ئې په شاوه د خولو ډ ک ستړی ستوما نه کورته راغی د زوی ژړ ائي تر غوږ و شوه خیال و کړ چې ماندینه‌ئې خوب وړی

ده او د هلک په ژړا خبره نه‌ده په زوره‌ئې څو سوی ناری و کړی خو چا کوم جواب ورنکړ ګومان ئې و کړ چې د همسایګانو کره په مجلس اخته شوی‌ده مجبوره شو د کلي ټول کورو ته‌ئې پسې

وغوښتله مګر هیڅ پته‌ئې معلومه نه‌شوه مأیوسه کورته‌راغی او دالې یقین شو چې له کوم چا سره تښتیدلې ده ددې بېوفائي د حسرت آسودی او ښکې په سترګو کښې ولغړېدلې او په

دی تلاش کښې شو چې سمدستي کومه داسې ښځه پیدا کړي چې په اجوره سره‌ئې ووړو کی زوی ته‌ئې ور کړي مګر متأسفانه په دې مقصد سره هم موفق نشو حیراني واخیستی په‌دې حال

کښې ئې ناڅاپه وزانګو ته‌فکر شوو ی لیده چې زوی ئې د مرګی سوګلي وهي غم ئې ونی کړ له‌ډېره غمه ځخه‌ئې خنجر له تیکي ځخه راوایستی د مړه زوی جسد ئې مخاطب کړ او په ډېر حسرت

ئې داسې وویل اې ! زما ګرانه‌زویه بیده‌سه په ابدي خوب بیده‌سه ترهغو پوری په‌زه آرام و نه کړم ترڅو چې ستا کسات له بیوفا

موره ځخه چې داسې د محرومیت په حال کښې پرېښولې وانخلم د زوی مرګ له یوی خوا او د

ماندینې بیوفایي له‌بلې خوا دی داسې قهرولی ؤ چې بیله انتقام اخیستلو ځخه ئې دا او رپه‌بل شی سره نه وژل کیدی.

مجبوره شو د کور ټول هال و مال ئې خرڅ او په هغه سره‌ئې د فونغراف یو صندوق او د موسیقۍ ځه

ضروري اسباب رانیوی په کلو او ښارو کښې یه‌ئې د مختلفو لو بو په ښودلو سره د ننداره چیانو سات ور تیر اوه کله کله به‌ئې بیا دریاب په غولو او د خوند وروستدرو په‌ویلو سره له

خلکو څخه اجوره اخیسته او د شپې ؤ ورځې ګذاره به ئې په کوله .

یوه ورځ ئې د میلان په ښار کښې د خپلې خائینې میرمنې د کور له مخه سره د تماشې محفل جوړ کړی ؤ د خلکو ازدحام او هاې هوی

د هغې توجه ددې وخوا ته جلبه کړه نو د زړه سوی له وجه څخه ئې یو موټ پیسې د نو کـــــر پلاس ورکړه ته راولیږلې مګر جیو فانی قبولې نه کړې او د شپې ئې

له یوې نامعلومې لارې څخه پټ ځان د هغې د خوب وخونې ته ورساوه او په یوه ګوښه کښې غلی منتظر کښېنستی په نیمه شپه کښې

چې ئې ماندینه له تیاتره څخه ستړې ستومانه په موټر کښې راغله او د خوب پر بستر اوږده وغزیـــده له جیو فانی دا موقع غنمیت

وګڼله له پټ ځایـه څخه راووتی او له بستره سره ئې ودرېد او مخ ته ئې داسې ئې مخاطبه کړه اې! خائینې حق ناشناسې – دا ته لره مناسبه وه چې زه او خپل

شیرین زوی دې د محرومیت په حال کښې پریښوو لو او تا د پیسو په طمع داسې ناوړه اعمال و ته چې له شرافت سره منافي دي لاس

ور ته کړ اې بیوفا! تر عیشو عشر ته پورې دې خپل شیرین زوی هم هیر کړ او زما میړه توب حقوق دې هم

پایماله کړه؟! اوس نو د خپلو کړو د عوض منتظره اوسه دا ئې وویله او سمدستي ئې په هغه خنجر چې د مخه ئې ددې کار لپاره پټ

په ملا کې وهلی ؤ د هغې کلمې وریاد، باد کړی په وینو لړلی خنجر ئې څو

واره و ځان ته بیا غلی له هغې لارې څخه چې راغلی ؤ بیر ته ولاړی .

د قصر خادمان په دغه

سهار له دغې فاجعې څخه خبر شوه او ذکر ئې په ډېر تاثر سره په اخبارو کښې خپور شو جیو فانی د مخه تر دې چې پلیسان دده د میندلو

په تلاښ کښې شي ومر بوطې اداری ته ولاړی او د خپل جانی توب اعلان ئې ور ته وکړ او قصه ئې ټکی په ټکی

له سره څخه تر پایه پورې ور ته بیان کړه کله چې قضیه د محکمې ته د فیصلې لپاره محول له شوه او قاضي په واقعه پوره خبر شو امر ئې دده په برات سره صادر کړ او معقتول له ئې شرف پایمالونکې مجرمه وګڼله .

پای

ټاګور

# اې ژوندونه!

اې د ژوندانه بله اوره، راشه اورونه اوړه!

په ښادې او غم کښې اې زما ژونده، په هر کور کښې ډیوه بله کړه؟

قوت او نور راوړه !

اطمینان او خوشحالی راوړه !

محبت په کاروا چوه، او هر څه چې تل اوښه دي، هماغه راوړه

اې سراسر بخښښه! د ثواب له لاری راشه .

خوږ خوب او نیکبخته بیداری راوړه:

د غم په شپه د مور غو ندې ویښ اوسه!

د ښادې په مجلس کښې خپله نمه کینه خندا مه دریغه وه !

اې د ژوندانه بله اوره .

راشه، راشه اورونه اوړه!

ژباړه

# د سهار رڼا

د لوی لوی غرو پر سر د سهار رڼا ښکاره شوه زه چې د شپې په توره تیاره کې ناست وم ، ددې رڼا په برکت وپاڅېدم ، دا رڼا څنګه ښکلې ده ؟

تیاره او بیده دنیا څنګه د ښکلا په ګېڼو ښایسته کوی ؟

آسمان د وړ تور کالی وروور له ځانه لیری کوی ، او لمن ئې هم هر ګړی سپینیږی !

اوه ! کله چې سهار شو ، د مرغیو سیلو نه هم په فضا کې اننګو نه کوی ، د وی چیری ځی ؟

دا چوغکه هم له ځالې څخه را او پاڅیده ، چن چن ناری وهی !

یوه شیبه وروسته به لمر هم را وخیژی انسانان به د خوبه راویښ شی .

هو کې ! رڼا د بیدو د خوب د ښمنه ده په رڼا کې څوک بیده نشی پاتیدای .

څښتنه ! زه پدی رڼا کې چې ستا د اوه قدرپلوشی پر مخکه پاشی د خپل زړه رڼا ستا حضور ته اهدا کوم .

که دغه رڼاوی سره ګډی شی نو دغه زما تیاره کوټه به نکړی روښانه ؟

پاکه څښتنه ! له خپلی جاودانی رڼا څخه یوه پوه زما په زړه کښی بله که چې ددې شپې په تورتم کښی لار وویندم ؟

او دا تیاره تیاره تاږو بی می را ته روښانه شی .

«ح»



د جنګلک فابریکه چې د ګران
هیواد د فلزي صنایعو او د
موټرانو د ترمیم ستره فابریکه
ده په دې فابریکه کې د موټرانو
ترمیم، باډي او موبل جوړولو
میخانیکي فلز، ساختماني فلز
ریخته ګري او د برېښنا د ترمیم
آلات ځانګې شته او هم د
آکسیجن د استحصال او د بتون
په دستګاو مجهزه ده په دې
عکسونو کښې تاسو موټر د
ترمیم په حال کښې وینـې

